# فهرست

# مناجات

بنیادم په دې اووه رنګه جهان کښې
تل اخته دی په فریاد او په فغان کښې
د ملګري تمنا يې ژړوي
څه خوږې- خوږې نغمې ور زده کوي
مګر دا، دا د اوښو ختو دنیا
څوک ویلای شي يو زره لري دانا؟
غاړې، غرونه، دریابونه کاڼه غلي
لمر سپوږمۍ او آسمانونه کاڼه غلي
آسمانونو کښې يې ستوري دي بلا
خو هر يو تنها د يو بل نه جدا
هر يو مور غوندي يوازې بې چاره دی
ځان ته شنه خوره فضا کښې اواره دی
کاروان نه کړي د سفر لا ارادې
لوی آسمان دی او ناراسته اوږدې شپې
دا دنيا ده زموږ ښکار او موږ ښکاريان يو
که د چا له يادو اوتي اسيران يو
ډېر مي وژړل رانغله يو صدا

د انسان ملګری کوم دی په دنیا
د څلور کنجه دنیا ورځ مي ليدلي
چي روښانه کړي ګلی، کوڅې او کلي
رڼايي يې ده د يو ستوري د تلو
بل څه نشته خو بس دا چي "لاړو" وو
ورځ هغه ده چي شمېر نه ده له ايام
د سحر يې نه غرمه شته نه ماښام
که روښانه روح په نور باندي د دې شی
آواز هم لکه د رن-ګ ليده کېدای شي
پټ د دغې به رڼا را څرګندېږي
او د دې نوبت نه ځي او نه تېرېږي
اې مالکه! دغه ورځ روزي زما کړې
او له دې بې سوزه ورځو مي رها کړې
د تسخير آيت* ښيلي د چا شان دی
دا شين رنګی آسمان چا وته حيران دی
څوک ؤ پوه په راز د علم الاسمآء؟
څوک ؤ مست په هغه جام هغه مينا؟
تا څوک خوښ کړلو له دې ډکې دنيا؟

---

* آيت تسخير د علم الاسماء. قرآني آيتونو ته اشاره ده.

څوك دي كړلو د خپل راز سره اشنا؟
اې چې ستا غشي څيري سينه زما
د "ادعوني" تكى چا ته وې چا؟
د تا مخ زما ايمان، زما قرآن دى
ته زما نه دي جلوې ساتې ارمان دى
كه د لمر نه سل شعلې را ووريږي
خو د لمر هغه دولت پرې نه كمېږي
حاضر عصر كړلو عقل را حصار
څه شو۔ څه شو زما جانِ بې قرار؟
په عمرونو وجود ځان سره تاوېږي
چرته ي بېتابه روح ترې را كوزېږي
خفه كيږه مه خو ستا دا ښوره زمكه
د آرزو د تخم كر ته سمه نه ده
د دې بې حاصله ختو نه څه كيږي؟
غنيمت دى كه يو زړه ترې وټوكيږي
ته سپوږمۍ راشه زما په شبستان
لږ خو وينه زما بې نوره ځان
د لمبې به څه پرهېز وي له خاشاك
او د تندر پرېوتو نه وي څه باك

ژوند مي تېر کړو په فراق په جدايي
اوس بل اړخ د آسمان را وښايي
همګي ترږلي ورونه راته وا کړه
او دا خاوره فرښتو سره اشنا کړه
داسي اور مي په سینه ولګوه
چي عود پرېږده او لرګی وسوځوه
بیا دا عود مي د انکار دپاسه کښېږده
او لوګی مي خور تمام جهان کښې پرېږده
اور زما په جام کښې شته دی نور يې بل کړه
یو نظر د تغافل سره دِ مل کړه
موږه تا لټوو، ته له نظر دور يې
نه خطا شوم، موږ راندہ یو ته حضور يې
یا له رازه دا پردې جدا کړه لرې
یا دا بې دیداره روح له ما کړه لرې
بې نمو د فکر اونه شوه زما
یا یو تبر غوارم یا بادِ صبا
عقل را دي کړو، جنون هم راته راکړه
لار د جذب اندرون هم راته راکړه
علم خیال کښې ځان ته اونیسې مقام

او د میني ځای دی قلبِ لاینام
علم څو له میني ونه خوري مېوې
پکښې کیږي د فکرونو تماشې
د جادو تماشه ګاه د سامري ده
علم بې روح القدس جادوګري ده
بې جلوې هوشیار په لاره نه شي تلای
د خپل خیال په غلبو کښې مري پر ځای
ژوندون بې د تجلي نه رنځوري ده
مجبوري ده دین او عقل مهجوري ده
دا دنیا ده کوه و دشت و بحر و بر
موږ نظر غوارو او دا وایي خبر
آواره زړه منزل غواړي ورکړه دې ته
د سپوږمۍ دا ټوټه بیا ورکړه هغې ته
زما خاوره صرف خبري ټوکوي
بیا هم نه خلاصیږي حرف مهجوروي
د آسمان د لاندي زه اوسم غریب
یو ندا له هغه خوا "اِنِّيْ قَرِيبٌ"
چي د لمر، سپوږمۍ په شانې شي غروب
دا جهان او دا شمال او دا جنوب

له طلسمه د پرون او صبا تېر شم
زه له لمر او له سپوږمۍ ثریا تېر شم
موږ بخري او ته تل تر بل رڼا
زموږ څه دي؟ په سوال غوښتني یو دوه سا
اې د مرګ د ژوند له جنګه نا آشنا!
دا بنده څوك دی؟ چې رشك کړي په مولا
یو بنده دی آفاق ګیر و ناصبور
نه خوشحال دی په غیاب نه په حضور
زه آني یمه ته ما جاوداني کړه
دا د مځکې اوسېدونکی آسماني کړه
ضبط راکړه د ګفتار و د کردار
لاري شته دي خو که و مومم رفتار
دا چې وایمه د بل جهان بیان دی
راکوز شوی دا کتاب د بل آسمان دی
سمندر یمه اوبه مي نه کمیږي
داسي شته څوك چې مي تل ته ورسیږي؟
ډېر مخلوق مي په ساحل وګرځېدو
هیڅ يې ونه لیدل بې له څو څپو
نا امیده له ډېر عمرو له زړو

کړم خبري د يو ورځي د راتلو
دغه تکی مي څوانانو ته آسمان کړې
خدايه دوی ته سمندر زما پايان کړې

%%%

# آسماني تمهيد د ازل په ړومبۍ ورځ آسمان

## د مځکې تعريف کوي

ژوند د لذت ځني د غيب او حضور
جوړ دا جهان کړو د قريب او د دور
داسي يې تار د نفس وشلولو
سازه يې کړه حيرت خانه د ورځو
د "ته جدا او زه جدا" ناره
د ځان ښودني ولولې کړه ښکاره
ستورو، سپوږمۍ ته د ټک وښود شو چل
سل څراغونه په فضا کښې شو بل
په شين آسمان کښې اودرولو آفتاب
يو زربفتي خيمه د سپينو طناب
ړومبۍ سحر شو په افق له عدم
غېږ کښې يې واخستو دا نوی عالم
د خاورو خونه وه جهان د انسان
خوره صحرا ده، نه منزل نه کاروان
نه يې په غرونو کښې ولې بهېدې

نه يې وريځې په صحرا ورېدې
نه د مرغانو په يو ښاخ سازونه
نه په ورشو کښې د هوسۍ ټوپونه
د روح رڼا نه وه پر بحر و پر بر
ول ول لوګی يې د بدن ؤ څادر
د سپرلي باد پرې لګېدلی نه ؤ
د مځکې دړ کښې يې شينکی ويده ؤ
شين آسمان مځکې ته پېغور ورکړو
"داسي سپك ژوند خو مي بل ونه ليدو
په سترګورو کښې په شان د ړندو
سوالي رڼا غوارې زما له ډيوو
خاوره خو خاوره ده روښانه نه ده
غر که شي سياله له آسمانه نه ده
يا خو ژوندون د دلبرۍ زده کړه
يا د مرګي له کمترۍ زده کړه"
مځکه خجله له پېغوره شوله
په زړه درنه له رنګه توره شوله
رب نه يې دا د بې نور يې وغوښتلو
پاس له افلاکه ورته برغ وشولو

وې: "اې زما امانتګرې مځکې
د خپل ضمير نه بې خبري مځکې
ورځي روښاني دي د ژوند له غوغا
نه چې دا ويني د جهات له رڼا
د سحر نور پيدا کړي نور داغدار
نور د روح پاك د زمانې له غبار
نور د روح تېز د پلوشو نه د لمر
بې له دې جوړو لارو ځي په سفر
ولې مايوس شولې له خپلې دنيا؟
نور به د روح شي ستا له خاکه نما
د انسات عقل به جهان کړي شبخون
او د ده عشق به لامکان کړي شبخون
ځيګر يې لار پېژني بې رهنما
نظر يې تېز ځي د جبريل نه سيوا
خاوره خو الوزي په شان د ملك
يو ويجاړ سراى دى په لار کښې فلك
داسي ورښخ شي د آسمان په بدن
لکه رېشمو کښې چې ښخه شي ستن
لر کړي داغونه د وجود د لمن

د ده نظر دی چې بینا کړي زمن
که خونړی دی عبادت کوي کم
خو د روزګار نیلۍ پر لاره کړي سم
سترګې رڼا کړي کائینات ویني
چې په صفاتو کښې بیا ذات ویني
څوک چې مین شولو په حسن د ذات
هغه سردار شو د جمله موجودات"

# د ملایکو سندره

دا خاك د فرشتو نه به افزون شي یوه ورځ
له بخته به یې دا مځکه ګردون شي یوه ورځ
چې خیال یې پرورش د حادثو له څپو مومي
ګرداب د شین آسمان نه به بېرون شي یوه ورځ
معنا کښې د آدم وکړه لږ فکر، تپوس مه کړه
اوس ښکاري نشه ناك خو به موزون شي یوه ورځ
زمول شوی دی خو داسي به موزون شي دا مضمون
یزدان به د تاثیر نه پرې مفتون شي یوه ورځ

# د مځکي تمهيد د حضرت رومي رح روح

## څرګندېږي او د معراج د اسرارو شرح کوي

مينه يو شور دی بې پروا له ښار
شعله يې مره کاندي غوغا د ښار
غوارې خلوت د سمي غرونو سره
يا په ساحل د درياب‌ونو سره
چې په يارانو کښې محرم نه موم
سود مي په دا شي چې ساحل ته وزم
لمر پرېواته کښې د درياب ننداره
په شنو اوبو کښې شي لعلونه ښکاره
روند هم له دې خوند د نظر اخلي
پکښې ماښام رن‌ګ د سحر اخلي
څه د خپل زړه سره بحثونه مي وو
څه مشورې څه خواهشونه مي وو
آني دی ولې دي "تل" دی نه وي؟
ژوندی دی ولې دي ژوندی نه وي؟
تږی او لري د چيني له غاړې

# غزل

شونډي پرانېزه چي قند فروان زما ارمان دی
مخ ښکاره کړه چي دا باغ او ګلستان زما ارمان دی

په يو لاس کښې جام د ميو په يو لاس د اشنا زلفې
هم په دې رنګه يو رقص په ميدان زما ارمان دی

تا په ناز چي را ته ووې "نور مي مه خفه کوه ته"
"نور مي مه خفه کوه ته" دا بيان زما ارمان دی

عقله ته له ډېره شوقه يو پنډوس شه رغړېدلی
هغه سوی پرېشان عشق نکته دان زما ارمان دی

د فلك اوبه خواره خو بې وفا لكه سېلاب دی
زه مهی يم زه نهنګ يم لوی کمان زما ارمان دی

د فرعون له ډېره ظلمه زړه زما دی را تنګ شوی
هم موسیٰ او هغه نور يې د ګرېوان زما ارمان دی

پرون شيخ ډيوه په لاس کښې ګرځېد له ښاره چور ليدلو
زه خفه له ديو او دد يم يو انسان زما ارمان دی

زړه مي تور شو زړه مي بد شو، له ملګرو مستو پستو
يا رستم يا امزری د پاك يزدان زما ارمان دی
ما وې دا نه پيدا کيږي، زه يې ستړی په تلاش يم
وې چي کوم نه پيدا کيږي، دا سامان زما ارمان دی
((رومي))

څپه ويده شوله پر فرش د اوبو
لمر چي شو تت د افق مخ تور شو
د يو تکړې ترې نه غلا وکړه ماښام
ستوري شو پاس لکه يو کښلی په بام
د رومي روح هره پرده کړه پاره
د يوه غر له شا يې مخ کړو ښکاره
مخ يې روښانه ؤ په شان د آفتاب

وه زړېوډیَ يې لکه وخت د شباب
تن يې روښان د خدای په نور ښکارېده
سر نه تر پښو سرورـ سرور ښکارېده
ۀ يې په خله هغه پټ راز د وجود
خلاص کړلو ځان د صوت و حرف له قيود
ۀ هر يو حرف يې آئينه روښانه
علم يې ګډ د زړه د سوزه سره
وې مي موجود او ناموجود څه وي؟
څه وي محمود او نامحمود څه وي؟
وې موجود هغه چې نمود غواړي
ښکاره کېدل خو تل وجود غواړي
څه دی ژوند؟ ځان سنګارول له ځانه
بيا شهادت په ځان غوښتل له ځانه
ورځ د الست يې انجمن جوړ کړو
په خپل وجود يې شهادت وغوښتو
مړ يې ژوندی يې که دي ساه وي پر لب
کړه شهادت له درې کسانو طلب
ړومبی ګواه دي خپل شعور واخله
د ځان کتل د ځان په نور واخله

دويم ګواه د بل شعور واخله
د ځان کتل د بل په نور واخله
درېيم ګواه شعور د ذات واخله
د ځان کتل په نور د ذات واخله
ته که دی نور ته کلك په ځای پاتې شې
حی او قائم به لکه خدای پاتې شې
دی خپل مقام ته رسېدل ژوندون
دی بې پردې د ذات ليدل ژوندون
د مومن نه شي اطمينان په صفات
مصطفٰیρ نه راضي کېده بې له ذات
څه وي معراج؟ خو د شاهد يو ارمان
بيا د هغه په مخامخ امتحان
داسي شاهد چي بې تصديقه د دوی
زموږه ژوند لکه د ګل رن‌ګ و بوی
چي په حضور کښې بې پاتې شي استوار
هغه سړی به وي کامل په معيار
ذره بې تېنګه ساته تاؤ که لرې
کلکه بې غوټه لره تاؤ که لرې
خپل تاؤ پخپله زياتول ښه دی

د لمر په مخ يې ازميل ښه دی
دا زوړ قالب دي وران کړه بل جوړ کړه
کړه امتحان له ځانه "تل" جوړ کړه
داسي محمود چي وي محمود يې ګڼه
ګڼي ژوند اورمه ګڼه دود يې ګڼه
بيا مي وې حق ته رسېدل څنګه وي
د خاورو غر اوبو شلول څنګه وي؟
ښکاري له خلقه چي خالق دی بهر
موږ زمانې يو بد ځېلې پر سر
وې چي په لاس که درله درشي "شیطان"
په خپل قوت به مات او ګوډ کړې آسمان
ودرېږه زر به شي بربنډ کائينات
څنډ له لمن به وهي ګرد د جهات
محسوص به نه کړې زيات او کم د موجود
ستا دی له ده، د ده له تا نه نمود
پوه چي په "الا بسلطان" شي سرې
مېږی ملخ نه دي چي ختو کښې مري
د زېږېدو په طريقه پيدا شوې
بيا دې څلور ګوټه دنيا ته راغلې

بیا ترې تلل هم په زېږېدو کېدای شي
د دې ترون په پرانستو کېدای شي
له اوبو ختو زېږېدل نه دي دا
پرې دی په دې چې لري زرونه صفا
هغه زېږون مجبوري دا په اختیار
هغه پرده کښې پټ او دا په اظهار
یو په ژړل بل په خندل وکړنه
یو په لټون بل په موندل وکړنه
دننه سیل د کائینات هغه دی
او د جهاتو نه بهر دغه دی
هغه د شپو ورځو یو پور وکړنه
دا په شپو ورځو باندي سور وکړنه
هغه چي زېږي نو شکم وشلوي
او دا چي زېږي نو عالم وشلوي
نخښنه د دوارو زېږېدو ده اذان
هغه له شونډو دا له زړه شي عیان
یو بیدار روح چي تر بدن راشي
لرزه د دې جهان په تن راشي
ما وې مطلب د زېږون وایه آسان

وې له شانونو دی د ژوند یو شان
ژوندون صفت لري د غیب او حضور
یو په ثبات او بل په تـګ مجبور
کله زړه سوی په جلوت کښې ښکاري
کله زړه جمع په خلوت کښې ښکاري
جلوت یې ځلند وي په نور د صفات
خلوت یې روڼ په تجلو وي د ذات
عقل یې راکاږي د جلوت په طرف
عشق یې را کاږي د خلوت په طرف
عقل یې ځان په دې عالم ازمایي
چې د ما دې دا طلسمونه مات کړي
د لاري کاڼي ورته عقل ښایي
وریځې تندر ورته وعظ کوي
شته دی په سترګو کښې یې ذوق د نظر
ولې ډېر نه دی د دیدن خو زړور
لکه د ړوند کړي یون د لاري په ډار
کوي په شان د مېږي نرم رفتار
چې رن‌ـګ او بوی غوندي تاؤ۔ تاؤ دی خرد
ځکه د یار د لاري کم دی ولد

کار يې ورو۔ ورو په تدريج مومي نظام
خدای زده چي ويني کله مخ د انجام
عشق وي له مياشتي نه له کاله خبر
د نزدې لري نه د ځنډ پرې اثر
عقل چي کار کوي نو غر ماتوي
مات يې چي نه کړای شي طواف يې کوي
غر وي د ډکي غوندي عشق ته آسان
زړه يې چابك لکه سپوږمۍ پر آسمان
ګور نالیدلی له جهان ځنې ځي
عشق په شب خون تر لامکان ځني ځي
طاقت د عشق له اعصابه نه دی
زور يې له باد و خاك و آبه نه دی
اوربشې خوري دی او خيبر نړوي
د پاس سپوږمۍ سيني ته څيړ ورکوي
مات يې ګزاره د نمرود کاندي سر
بې وسلې مات کړي د فرعون لښکر
په روح کښې عشق لکه لېمه کښې نظر
کور کښې دننه هم له دره بهر
دې ايره عشق هم د لمبې نه بره

کار يې د دين او د دانش نه غوره
ښکاره برهان دی او سلطان دی عشق
په دوه عالمه حکمران دی عشق
دی لازمان او نن صبا له هغه
دی لامکان زېر او بالا له هغه
له خپله خدايه چې خودي وغواړي
لکه نيلی واړه عالم زغلوي
د زرو مقام شي ښه څرګند د ده نه
شوق د دې زوړ جهان شي ورک د زړه نه
ورکوي خدای ته سر او ځان عاشقان
تاويل کونکی عقل کاندي قربان
عشق بې طرفه له هر خوا نه تلنه
حرامول په ځان د مرګ بلنه
يې لکه مړی په صندوق کښې د ګور
ته پاڅېدای شې بې شپېلۍ په خپل زور
شته په سينه کښې دي خوږې سندرې
ختو کښې ښبتيه! داسي ژاړې ولې؟
پاڅه مکان او په زمان سپور شه
پرانيزه غوټې د زنار نور شه

نوري کړه تېزي دواړه سترګې او ګوش
وينې چې څه د هوش په لار يې کړه نوش
څوك د مېږي هم چې آواز اوري
د لري خلګو د زړه راز اوري
واخله له ما دا پرده سوزه نګا
چې ګيرېدای نه شي لېمو کښې د چا
سړی خو "ديد" دی باقي پوست وګڼه
"ديد" چې ګڼې نو ديد د دوست وګڼه
"تن دي تمام په سترګو کښې ويلې کړه
بيا د نظر سره نظر کښې لاړ شه"

((رومي))

نهه آسمانه دي؟ ترې مه وېرېږه
خواره جهانه دي؟ ترې مه وېرېږه
پرانېزه سترګې دا زما او مکان
دواړه يو حال دي له احوالو د "جان"
چې مخکښې پرېوتو نظر له رڼا
جوړ اختلاف شو د پرون او صبا
تېارو د خاورو کښې دانه پراته وي

له لوی آسمانه بېګانه پراته وي
پوی ده په دې که وي فراخ ځایونه
زرغونولای شي خپل پټ بناخونه؟
جوهر یې څه دی؟ خو یو ذوق د نمود
هم یې مقام دغه جوهر هم وجود
اې چې بدن د روح محمل ګڼې
او ځان د روح له رازه نه خبر دې
دا محمل نه دی دا د روح یو حال دی
محمل وینا خو د خبرو چال دی
روح څه دی؟ جذب او سوزېدل او سرور
ذوق د تسخیر د کل عالم په ضرور
تن څه دی؟ شوق د رن‌ګ او بویه سره
د هر مقام د هره سویه سره
را نزدې لري دی یو باب د شعور
څه دی معراج؟ خو انقلاب د شعور
دی په شعور کښې انقلاب له شوقه
آزادول کړي شوق له تحت و فوقه
بدن د روح سره سیالي به څه کا
بند به الوت یې موتی خاوره نه کا

%%%

# د زمان او مكان روحِ زروان مسافر د عالم علوي سيل ته بيايي

په خبرو يې دا زړه زما بېتاب شو
هر بڅرى مي د تن لكه سيماب شو
چي ناڅاپه د مغرب، مشرق تر ميان
په وړيځ د نور مي غرق وليد آسمان
فرشته له دې وريځي شوه راكښته
يو خوا اور بل خوا لوګى په دوه طلعته
يو تك تور دويم روښان لكه شهاب
يو بيدار او د بل سترګې وړى خواب
سره او زيړ يې وو رنګونه د وزرو
لاجوردي آسمان رن-ګ په سپينو زرو
لكه خيال هسي مزاج يې "رم اشنا" ؤ
ت-ګ له مځكې تر آسمان يې په يو سا ؤ
هر زمان يې بل خواهش بله هوا وه
و الوت ته يې هر دم نوې فضا وه

وې په ټول جهان غالب يمه "زه روان يم"
هم ظاهر يم هم د خلګو نه پنهان يم
تدبيرونه په تقدير غُټه زما دي
زما ښکار دی که خاموش دي که ګويا دي
د غونچې پالنه ښاخ کښې زه "زروان" کړم
د مرغۍ بچې په ځاله کښې ګريان کړم
له پالنې مي دانه پوره نهال شي
که بېلتون وي خو له فيضه مي وصال شي
هم خطاب را رسومه هم عتاب
زياتوم تندي چې ورکړمه شراب
زه حيات او زه ممات او زه شور يم
زه حساب دوزخ، جنت، غلمان او حور يم
دی قيدي زما ملك او آدم پوی دی
دا شپږ ورځو کښې پيدا جهان مي ځوی دی
چې کوم ګل له ښاخه غوڅ کړي هغه زه يم
زه مورپنګه د اشياوو هم يې زړه يم
په جادو کښې زما ګير دغه جهان دی
دم په دم يې ژړوم راته آسان دی

ځوك چي پوی په سر د "لي مع الله*" ځان كا
بس جادو به زما مات هم هغه ځوان كا
كه دي زړه وي چي زه ووزمه له میانه
د زړه ورد "لي مع الله" كړه واوره ځوانه!
څه به وایم د هغه د ډېر اثر نه
خو دا زوړ جهان مي ووت له نظر نه
یا مېلمه زما نظر د بل جهان شو
یا هم دا جهان بدل راته بل شان شو
مړ شوم زه په دې دنیا د رن‌ګ او بوی كښې
شوم پیدا په بل عالم بې های و هوی كښې
تار مي غوڅ شولو له دې زاړه جهانه
شوم ورپېښ نوي جهان ته ناګهانه
د عالم په لوی نقصان مي زړه جلیا شو
بیا له خاورې مي یو بل جهان پیدا شو
تن مي سپك روح مي سیار لا تر پخوا شو
زړه مي نوري سترګې بیا موندې پنا شو
څه چي پټ ؤ را ښكاره شول له پردو نه
خوند مي واخستو د ستورو د نغمو نه

* لی مع الله. تلمیح حدیث لی مع الله وخت ته.

%%%

# دستورونغمه

ژوندون حاصل له عقله، عشق دی راز د کائینات
په خیر راغلې آدمه! دې عالم ته د جهات
زهره او مشتري، په کشمکش کښې ستا دپاره
ستا یو نظر دپاره، دي په جن-ګ تجلیات
په لار کښې د اشنا چي، نوې جلوې ښکاري
صاحب د شوق به نه بایلي، خپل زړه په کلیات
ژوندون په پورته ت-ګ وګڼه، ژوند صدق و صفا
ورخور په ملك د خدای شه، له ازل تر ابدا
ورکړه غزلګو ته اجازت د ها و هو
پسته محتسب او رند له می سبو سبو
شام، عراق او هندوستان، پارس دي روږدي په خوږو
اوس خو لږ تراخه هم ورله ورکړه د آرزو
موج د سمندر سره، چي ووهي ډغره
خوند د "تېز تګ" د چینې زړه کښې کړه ور پو
سور اور دی درویش فقیر، میري قیصري خس ده
زور ته د شاهانو، سپینه یو خبره بس ده

دبدب قلندري شان و شوکت سکندري
جذبه د کلیمυ هغه، دا جادو د سامري
هغه په یو نظر، او دا وژل کړي په لښکرو
هغه هم تن صلح، او دا جنګ زور اوري
جهان دې دوارو خپل کړلو، او دواړه دوام غواړي
دا یو د قاهرئ په زور، او بل په دلبري
سدمات سکندري کړه، زده ګزار قلندري کړه
تازه د کلیمυ خوی کړه، ماته کوډه ساحري

%%%

# د سپوږمۍ آسمان

د آسمان مځکه چي ملك د کبریا دی
دا سپوږمۍ پیروني ټول میراث زما دی
هر هغه چي در ښکاره شي په دې لار کښې
خپل نظر ورته محرم کړه په دیدار کښې
خپل وطن کښې مسافر يې لږ چالاك شه
اې له خپله ځانه ورکه! لږ بیباك شه
دوه جهانه به ستا هر حکم په زړه وړي

څه چي واېږي ورته ټول به په لیمه وړي
دنیا څه ده؟ د لیدو کتو بتان
هر "صبا" يې د "پرون" په شان روان
د طلب په بیابان کښې دېوانه شه
مطلب دا چي ابراهیمυ په بتخانه شه
ته که تېر شولې له مځکې له آسمانه
شې به تېر له هغه، هم له دې جهانه
کړه له خدایه نور طلب اووه آسمانه
سل زمانه نور طلب کړه سل مکانه
د جنت په ولو مست ور پرېوتل
د ښو بدو له جګړو اوزګارېدل
که نجات په اوزګارتیا له جستجو وي
ګور به ډېر ښه د جنت له رنګ و بو وي
مسافره! روح مرده شي چي قیام وي
لا ژوندی شي په الوت کښې چي مدام وي
ملګرتیا د ستورو ښه ده په سفر کښې
دمه نه کول مزه ده په سفر کښې
دومره والوتمه پورته مخ په باندي
چي را پاڅه ښکارېدل ښکاري را لاندي

توره خاوره وه د شپې له قندیل غوره
زما سیوری ؤ، زما له سره بره
په هر دم نزدې کېدم په هر زمان
آن ښکاره چې د سپوږمۍ شو کوهستان
رومي ووې "له ګمانه راشه پاك شه
اوس په خوی په خصلتونو د افلاك شه
سپوږۍ لري ده له موږه خو آشنا ده
بس ږومبی منزل زموږ د لار يې دا ده
نزدې لري د روزګار يې د لیدو دی
لوی غارونه د کهسار يې د لیدو دي"
د دې غرونو وېرروونکې څه چپیا وه
بهر ټوك- ټوك ؤ دننه يې ځلا وه
"خافطین" او "یلدرم"* سلګونه غرونه
تور لرګی په خوله په ګېډو کښې اورونه
له درون يې شینکی تیغ وهلای نه شو
په فضا کښې يې مارغه الوتی نه شو
وریځ وچه هوا تېزه تله په منډه
د مرې مځکې سره جنګ تنډه په تنډه

* خافطین اویلدرم. د سپوږمۍ اورسېدونکي غرونه.

زور مېتلی یو جهان بې صوت و رنګه
هیڅ خبر نه ۀ د مرګ او ژوند له جنګه
نه د پاسه پرې زرغون د ژوندون خس ۀ
نه یې ملا د حادثو زغلمی مس ۀ
د اګر چې کورنۍ یې له آفتابه
خو صبا بېګا یې تش له انقلابه
روميؒ اووې چې په وراندې یې وسواسه
دا بیدار دولت چې پرې نه ږدې له لاسه
د ظاهر نه یې باطن ښکلی روښان دی
په هر غار کښې یې دننه بل جهان دی
هر چې راشي اې دانا ته یې قبضه کړه
بند یې ښه د غورو سترګو په حلقه کړه
په بینا سترګو هر څېز لیده کېدای شي
ښه په تله د نظر معلومېدای شي
چې رومي دي چرته بیاېي ورسره شه
دوه لحظې خو یې له غیره بېګانه شه"
لاس یې ونیوو زما ځان ته یې راکښلم
د یو غار سر ته یې تېز ورسولم

%%%

# يو هندي عارف چي د سپوږمۍ په يو غار کښې

## خلوت شوی دی او د هند خلک ورته "جهان دوست" وايي

د هغه په اوږه ما کښېښودو لاس
لکه رهوند غار ته داخل شوم بې وسواس
د سپوږمۍ بې له تيارې نه زړه داغ۔ داغ ؤ
پامتدار يې لمر په دډ کښې د څراغ ؤ
يرغلونه وهم شک پر ما بسيار کړل
هوش او عقل يې زما دواړه په دار کړل
تلم پر لار او شوکماران راته په څېر وو
د زړه صدق او يقين مي هواګير وو
چي ناڅاپه جلوه راغله بې حجابه
روڼ سحر شو را د بره بې آفتابه
ده کڅې د هري ترېي زناربنده
لکه ديو هسي له ونو سربلنده
دا رښتيا د خاورو ختو آباد ځای دی
که په خوب کښې مي خيالي جوړ کړی سرای دی
په هوا کښې يې محسوس د مې سرور ؤ
سوری هم د دغې خاوري په سر نور ؤ

نه د دې مځکې پیدا چرته آسمان ؤ
نه افق يې د شفق نه ګلستان ؤ
هلته نور چې هیڅ تیارو کښې حصار نه ؤ
د سحر ماښام په مخ يې غبار نه ؤ
يو عارف هندي د ونې لاندي ناست ؤ
چې رنجو ته يې هر يو نظر په خواست ؤ
ناست بربنډ ؤ منجليه وېښته پر سر
يو سپین مار تې نه را تاؤ وو کوز او بر
دا آدم له اوبو ختو بالا تر ؤ
دا عالم يې جوړ له خياله يو پيکر ؤ
خلاص د ورځو د ګردش نه يې وختونه
بلوسېدې پرې باندي نه شول آسمانونه
وې رومي[رح] ته درسره دی څوك راغلی؟
چې د ژوند ارمان يې سترګو کښې ساتلی

# رومي او جهان دوست

یو سرې دی چي ورك شوی په لټون کښې
دی ثابت خو سیارو غوندي په یون دی
پخته کار دی هم له دې چي کار یې خام دی
خوښ زما دی چي منزل یې ناتمام دی
د آسمان په تاخ کښې ده ایښې پیاله ده
له جبریله یې د فکر قباله ده
د باتور غوندي د لمر او سپوږمۍ ښکار کا
دا نهه آسمانه ګرد د ځان د لار کا
بنیادمو ته یې خبره رندانه وي
حوره بت ګڼي جنت یې بتخانه وي
سره لمبه یې په لوګو کښې ما لیدلې
کبریا یې په سجدو کښې ما لیدلې
د شپېلۍ غوندي له شوقه په ژړا وي
هم بېلتون او هم وصال ورله قضا وي
خدای زده څرنګه سرشت لري حیران یم
بې خبره له مقامه د دې ځوان یم

# جهان دوست

بې رنګي ده حق، له رنګه جوړ عالم دی
څه دی حق؟ او څه عالم؟ او څه آدم دی؟

## روميرح

سړی توره ده، حق توره چلوي
دنيا کاڼی دی چي دا پرې تېروي
د مشرق خل‌ک خو حق ويني جهان نه
د مغرب خل‌ک جهان ويني يزدان نه
پرانستل سترګې په حق دا بندګي ده
بې پردې ليدل خپل ځان دا زندګي ده
کوم بنده چي د ژوند ترمې- ترمي دام کا
خدای په هغه بنده تل صلوٰة سلام کا
چي خبر د خپل تقدير نه بنده نه وي
د تن خاوره يې د زړه سره مله نه وي

## جهان دوست

په وجود او په عدم کښې را حصار دی
مشرق ډېر کم پېژندلی دا اسرار دی
موږ چي هر وخت يې دنيا ته په کاته يو
نااميده د هغه له صبا نه يو

ما پرون د قشمرود* په دنګه څوکه
فرشته لیده له پاسه شوه را کوزه
ذوق د دید یې له نظر نه څڅېدلو
بس دا یو زما خاکدان یې ځېر کتلو
ما وې راز چي له محرم کا پټ ښه نه دی
ته څه ګوري په دې چپ خاوره کښې څه دی؟
جوړ ته حسن د زهره کړلې په ماتې
زړه کوهي کښې د بابل شو درنه پاتې
وې چي "وخت شو د مشرق اوس راښکاره دی
یو تازه آفتاب په غېږ کښې ورسره دی
لکه لعل شوه هر ګټه یې په لار کښې
هر یوسف یې له ښاه ووت انتظار کښې
یو قیامت یې دی نیولی په کنار کښې
زلزله ده ترې پیدا په کوهسار کښې
د مقامِ آذري نه یې رحلت شي
دی چي ترک د بتګر یې سره عادت شي
سخ د هغه قام چي سوز د ځان آشنا کا
چي خپل ځان له خپلو خاورو بیا پیدا کا

---

* قشمرود: د سپوږمۍ د کوهستان یو لمر.

په مَلکو لوی اختر هغه ساعت شي
را بيدار چي د غفلت نه يو ساعت شي"
هندي پير يوه لحظه راښکله سا
بيا په خير يې ما تو وکتو بيا۔ بيا
وې د عقل مرګ ؟ نو ما وې ترک د فکر
وې د زړه؟ نو ما وي چي ترک د ذکر
وې چي تن؟ نو اووې ما چي ګرد د راه دی
وې چي ځان؟ وي مي سِر د لاالٰه دی
وې آدم؟ نو ما وي چېرته سر د هو دی
وې عالم؟ وي مي دا دی روبرو دی
وې دا علم او هنر څه دی؟ ما وې پوست
وې دليل يې څه دی؟ ما وې مخ د دوست
وې چي دين د عامي؟ ما اووې شنيد
وې چي دين د عارف؟ ما اووي چي ديد
په کلام يې زما ډېر خوشحال شو زړه
يو څو رازه يې راته وښودل خواږه

## د هندي عارف يو نهه خبري

(1)

ذات د حق لره عالم نه دی حجاب
اربکي د غوټې نه وي نقش د آب

(2)

ډېر بهتره زېرېدل په بل جهان شي
چې سرې پرې بیا دویم کرته ځوان شي

(3)

حق له مرګه لري؟ عینِ زندګي وي
بنده څه زده؟ چې ښکار څنګه د مرګي وي
که هر څو موږه مرغان بې بال او پر یو
خو له خدایهΨ زیات د مرګ په راز خبر یو

(4)

څه دی وخت؟ خواږه په زهرو دي لړلي
رحمتونه دي په قهر دي لړلي
خالي وینې به یې له قهره دښت او ښار
رحمت دا چې وایي تېر شئ۞ بې له ډار

**(5)**

کافري خو مرګ دی اې روشن نهاده!
غازي ځان ساتي په مړيو له جهاده
مرد مومن ژوندی د ځان سره په جن‌ګ وي
په خپل ځان يې تل د پړانګ غوندي غورځنګ وي

**(6)**

په زړه وېښ مشرك خدمت د خپل صنم کښې
له زاهده ښه چې خوب کړي په حرم کښې

**(7)**

نازيبا چې ويني دا سترګه ړنده ده
د آفتاب سترګې ليدلې کله شپه ده

**(8)**

دانه ونه شي د ختو په صحبت کښې
سرې دغه صحبت ګير کړي په ظلمت کښې
دا نه ومني له ختو پيچ او تاب
دا په دې چې ښکار کړي وړانګه د آفتاب

**(9)**

ما وې ګل ته، څه خو وایه سینه چاکه!
څنګه اخلې رن‌ګ او بوی له باده خاکه؟
ګل ویل چي عقلمنده! ښه پوهېږې
له خاموشي برېښنا څرنګه خبرېږې؟
زموږ ژوند دا دی چي دا را کاږو او دا
ستا راښکل وي په څرګنده پټ زما

%%%

# د سروش جلوه

بند د دې نه پس نو د عارف د ذهن ور شو
مست شو پخپل ځان کښې د عالم نه بې خبر شو
یوړلو له ځانه ذوق و شوق و بې خودیو
لاړو تر وجوده د شهود له نیرنګیو
ؤ به که بخری په حضور کښې به یې طور ؤ
دی به چي موجود نه ؤ، نو نور ؤ نه ظهور ؤ
راغله په جادو کښې د دې شپې یو نازنینه
شپه که وه بې ستورو داېي ستورې شو له سپینه

زلفو يې سنبل غوندي په ملا وهل ټالونه
ځلند يې له مخ ؤ ګړنګونه وو که غرونه
غر ته په جلوه کښې د خپل حسن مستانه وه
مسته خوش الحانه بې سرود او پيمانه وه
مخې ته يې تېز۔ تېز چورليدو فانوس د خيال
رن‌ګ۔ رن‌ګ تماشې لکه فلك ديرينه سال
ؤ هغه فانوس کښې پيکرونه رن‌ګ په رن‌ګ
وه بابنه چرچنې له هوسۍ لره پلنګ
ومې وې رومي؎ ته اې د راز ځنې آګاه
دې ناپوه رفيق ته ځه په راز خو شه ګويا
وې "دا پيکر ګورې سپين غتن چې دی روښان
دا دی زېرېدلی انديښه کښې د يزدان
بيا چې بې قرار شولو د ذوق نه د نمود
کوز شولو څرګند شو، شبستان کښې د وجود
مور غوندې بې کوره غريبې يې په نصيب
ته غريب يې، زه غريب، هغه هم دی غريب
شان د جبرائيلυ لرې نامه يې ده سروش
هوش له بنده ورې او هم راورې ورلره هوش
مره غونچه زموږه په شبنم د ده تازه شي

مړ اور ته چي هم ورکړي پوکی بله لمبه شي
ساز د هر شاعر د زړه په دې زخمك بږغېږي
دی دی چي پرده د کجاوې ترې څيري کيږي
پروت بې په نغمه کښې يو جهان ليدلی ما دی
راشه تاؤ ترې واخله يو ساعت چي په نوا دی"

%%%

# د سروش نوا

زه پوهېږم چي کشتۍ به کړې، ورګډه په سراب کښې
په حجاب کښې به پيدا شې، هم به مړ شې په حجاب کښې
چي سرمه مي ووينځله، د رازيرح[*] له خپلو سترګو
ما تقدير د امتونو، پټ صحي کړو په کتاب کښې
په پټو په غرونو پرېوزه، په صحرا بيابان ورشه
چي د ځان سره ګوابنېږي، تندر مړ شي په سحاب کښې
مغربيانو سره وم زه، ډېر لټون مي وکړو نه ؤ
داسي کس چي مقامات بې، راتلای نه شي په حساب کښې
بې له ډېره لويه درده، قرب د هغه ممکن نه دی

* رازي: د قرآن شريف مشهور مفسر

ګلشن جوړ کړه په ګرېوان کښې، اې خوشبويه☒ په ګلاب کښې
اې زاهده! ظاهربينه، اې ورځه خودي فاني ده
ولې نه وينې طوفان ته، کوم چې پټ وي په حباب کښې
له مضرابه د مطرب خو، دا زړه شواندې نغمه نه ده
له جنت وتلې حوره، په ژړا ده په رباب کښې

%%%

# دير غميد کښې ته

## روانېدل چې ملايك ورته د طواسين کښې وايي

رومي رح هغه محبت لره دليل دی
چې و تږيو ته کلام يې سلسبيل دی
وې "هغه شعر چې تود لکه د اور دی
د ګرمۍ د الله هو نه پکښې زور دی
غه نوا چې ګلستان کړي خاشا کونه
غه نوا چې مات او ګوډ کړي آسمانونه
غه نوا د حق وجود لره ګواه
د فقير ځنې چې جوړ کاندي بادشاه

☒ بوی په ګلاب کښې د صوفېدو په مشهور غزل تلميح دې:
او درمن و من در او :: چون بو به ګلاب اندر

د بدن وینه لا نوره کړي سیاره
وي په زړه د جبرائیل نه لا پیداره
بیا هغه شاعر د سحر په هنر
غل د زړه شي او ابلیس شي د نظر
دا هندي شاعر الله د هغه یار شه
پاك يې زړه له لذتونو د ګفتار شه
عشق د ده ځني زده کړي مطربۍ ده
خلیلانو تې ښیلې آذري ده
هر یو تکی يې پیکه بې سوز و درد
اهلِ دل ورته مرده وايي نه مرد
له هغې خوش الحانۍ بې مقامه
ښه په خوب کښې چي څه ووايي ګلفامه
د ملت مینه کښې زړه شاعر بیدار دی
بې له دې ملت د خاورو یو انبار دی
د شاعر فطرت خو واړه جستجوی دی
دې پالونکې او خالق د آزروی دی
سوز د زړه پیدا کوونکی د عالم دی
شاعري خو بې له سوزه یو ماتم دی
چي مقصد د شاعرۍ آدم ګري ده

ځکه دا میراث خوره پیغمبري ده
وې مي څه پیغمبري وي څه خو وایه
دغه راز خو خپل محرم وته نمایه
وې "قامونه ملتونه يې آیات دي
دا زمورِه زمانې يې مخلوقات دي
کاڼي بوټي شي ګویا د دوی له دمه
دوی پټې مورِ يې حاصل یو اې همدمه
پاك د تن رېشه۔ رېشه نظرِ۔ نظرِ کا
تصور ته د جبریلυ وزري ورکا
دا غوغا او های و هوی د کائینات
شي په خوله يې د "نجم" او "نور" او "نازعات"✉
داسي لمر دی چي هغه له زوال نشته
چي منکر يې وي هغه لا کمال نشته
شته رحمت يې په صحبت کښې د احرارو
د خدای قهر يې په ګزار کښې د کرارو
عقل کل شي هم ترې مه شه ګرېزان
دا په دې چي یو ځای وینې تن و جان
درومه "تند د یرغمید پر لویه لار

---

✉ نجم، نور، نازعات، د قرآنِ کریم د سورتو نومونه.

څو چې وويني چې هلته دی آشکار
د سپوږمۍ په دېوال ليک ؤ دا رنګين
ګوره ته د نبوت څلور طاسين"
شوق پخپله لا پوهيږي بې دليل
وي الوت يې په وزر د جبرائيلυ
که اوږده وي لار خو شوق يې کړي دوه ګامه
تل رنځور دا مسافر شي له قيامه
يرغميد ته مو بيا منډي ګړندۍ شوې
چې څرګندي يې له ورايه بلندۍ شوې
څه تعريف بۀ درته کړم د دې مقام
چې طواف يې اووه ستوري کړي مدام
د فرش خلـک يې په نور روشن ضمير دي
د عرش خلـک په هغو خاورو بصير دي
ما ته خدای سترګې او زړه او ګفتار راکړ
لوی لټون يې د عالم د اسرار راکړ
له رازونو پرده پورته شوه يارانو!
درته وايم د طاسين د رسولانو

%%%

# دګوتم طاسين((ديوې بې حيا ډمې ښځې توبه كول))

## ګوتم

دا زاړه تراخه شراب او، هم معشوق كه وي ځوان څه دی؟
چې صاحب څوك د نظر وي، ورته حور او جنان څه دی؟
دا چې دروند او مضبوط ښكاري، دا به ورك شي دا به لاړشي
دريابونه صحراګاني، بحر و بر د جهان څه دی؟
دا دانش د مغربيانو، فلسفه د مشرقيانو
بت خانې دي طواف پرېږده، دا بتان دي بتان څه دي؟
له صحرا په ويره مه ځه، له خپل ځانه وويرېږه
چې ته يې او نور څه نشته، انديښنې د جهان څه دي؟
د ښو په څوكو زه چې، غوڅومه خپله لاره
بيا غمونه د منزل او، رېګ روان د كاروان څه دي؟
تېر له غيبه شه وهمونه، ګمانونه آواره كړه
اوسېدل په دې جهان كښې، او وتل له جهان ښه دی
چې يې خدای بخښي وتاته، هغه هيڅ دي جنتونه
كه جزا دي د عمل شو؟ بيا ګلان د جنان ښه دي
د خپل ځان راحت دې غواړې، د خپل ځان راحت به څه كړې؟
د بل غم كښې ستا له سترګو، دريابونه روان ښه دي

برند نظر خماري سترګې، ناز انداز او سرودونه
له دې وارو هم يو ښه شته، که دا هم په جهان شه دی
ښه ښایست د اننګيو، کله وي او کله نه وي
خو خيالات او کردار ښکلي، د نمانځلو په شان ښه دي

## دمه

دوه ژرندي چې مي نه کړی، دا زړګوټی بې قرار
يو دوه ولونه يې زيات کړه، د تاؤ۔ تاؤ زلفو دي زار
ده ستا د تجلې نه مي، سينه داسي روښانه
چې لمر سپوږمۍ ته ما ورکړه، تراخه د انتظار
کړل ذوق د حضور جوړ، د بتګر يې هم رسمونه
غولوي مينه په رن-ګ رن-ګ، فريبونو اميدوار
چې بيا يوه نغمه نوې، په جمع خاطر وکړم
بيا پرېږده مرغزار ته، دا مارغه د مرغزار
اوس پرامي نزه پېښې چې، دي بلنده طبع راکړه
چې ستا په شر يې ورکړمه، خلعت د کردګار
که غر په ترخځ غوځ شي، نو په دې کښې څه وينا؟
له عشقه شه خبر چې، په اوږه کړې کوهسار

%%%

# د زرتشت طاسين ((اهرمن د زرتشت امتحان کوي))

## اهرمن

ستا نه مي مخلوق دی، د شپېلۍ غوندي نالان
ستا نه مي سپرلی دی، لکه منی زمستان
زه دي بې دريغه، خوار زبون کړم په جهان کښې
رنګ دي کړو خپل نقش، زما په وينو په دوران کښې
حق به تل ژوندی وي، په جلوه ستا د سينا
مرګ به وي زما، د تېرو ستا يدِ بيضا
زړه ترل په لوظ، د يزدان بې وقوفي ده
تلل يې په رضا باندي، دا لويه ګمراهي ده
زهر پکښې ګډ وي، که صبا يې ګلابي وي
څه يې وي انعام؟ خو، غرغره آره چنجی* وي
نه ؤ يې دعا نه هيڅ، د نوحυ سره تدبير
نه ؤ د غريب خپله وينا کښې څه تاثير
پرېړده وداني او، چرته پټ کښېنه په غار کښې

* اره، چنجی، غرغره، تلميح د انبياوو په قيصو

مل شه د هغوی چې، څوك نوري دی په کردار کښې
جوړه په يوه نظر، د خاورو نه کېميا کړه
ته له مناجاته، آسمانونه هم جليا کړه
شه لکه کليمυ، په کوهستان کښې آواره ته
پورته شه، تيار شه، کړه نيم سوزه نظاره ته
تېر شه ولې تېر شه، پرېږده دا پيغمبري
ښايي چې ته پرېږدې، په ځای دا مړه ملاګري
کس که وي په منځ، د ناکسانوکښې ناکس شي
څو يې که فطرت وي، د شعلې خو جوړ ترې خس شي
واوره نبوت د، ولايت ځنې کمتر دی
عشق دپاره دا پيغمبري، يو درد د سر دی
پورته شه رسېږه، تر مقامه د وحدت
پرېږده جلوتونه، ورشه ونيسه خلوت

## زرتشت

نور درياب دی او تياره د هغې غاړه
بل سېلاب يې له زړه ما غوندي مه غواړه
تل په زړه کښې مي موجونه بې قرار وي
بې له غاړي ورانولو يې څه کار وي؟

نقش د هغه پاك بې رنګ چي ليداى نه شي
بس په خون د اهرمن راکښلى ښه شي
د خپل ځان ښکاره کول دغه ژوندون دى
او د خپل ګزار ازمېښت دغه ژوندون دى
په تنګسو زغملو لا خودي پخه شي
د خودى په لاس له حق لري پرده شي
حق بين بې له حقه نه ويني خپل ځان
لااِلٰه وايي په وينو کښې غلطان
عشق په خپلو وينو سور وي تېر له سر وي
غرغره آره زندى ورله اختر وي
هر چي پيښ په لار د حق کښې شي ټول ښه وي
په لېمو د خپل آشنا تراخه خواږه وي
ځان ته څه کوي؟ د حق جلوه چشمان
انجمن کښې حسن ښه ښکاري روښان
خلوت څه دى؟ درد او سوز او آرزو ده
انجمن ليدل خلوت يو جستجو ده
عشق کليم دى خو دننه په خلوت کښې
په صورت د بادشاهى شي په جلوت کښې
دى خلوت جلوت کمال د سوز او ساز

دا حالات او مقامات دي د نیاز
هغه څه؟ دیر او حرم نه تېرېدل دي
او دا څه؟ ځان له جنت ته هم نه تلل دي
شته خلوت او جلوت دواړه کښې مولا
خو آغاز دی یو دویم دی انتها
څه دي وې؟ پیغمبري یو درد سر دی
عشق چې ورسي تکمیل ته "آدم گر" دی
تلل په لار د حق کاروان سره مزه کا
روح یوازي نه، جهان سره مزه کا

## د مسیح طاسین د حکیم طالسطائي* خوب

ان په منځ کښې د یو غر نوم یې هفت مرګ
یو کڅۍ وه، بې مارغه بې ښاخ او برګ
چې له ګرده یې "نن زرِه" غوندي قمر ؤ
لمر یې تکی په فضا کښې کور او کر ؤ
په کڅۍ کښې یې روان د پارې رود ؤ
تاؤ را تاؤ د کهکشان د سیند په دود ؤ
وړاندي وروستو لوړ ژور ورته یو شان ؤ

---

* طالسطائي- د روس د حکیم مصلح نوم.

تاؤ را تاؤ څپې- څپې او تند روان ؤ
یو سړی ؤ تر ملا ډوب پکښې اوتر ؤ
ډېر فریاد یې خوت له خولې خولیې اثر ؤ
په قسمت کښې یې وریځ نه آب او باد ؤ
جل وهلي ته اوبه نه وې سیماب ؤ
یوه ښځه یې په غاړه نازک تنه
په لېمو د کاروانونو وه رهزنه
هر زاهد ته کافري ور زده کوونکې
په نظر ښه بد کول بد ښه کوونکې
ما هغې ته وې چې څوک یې څه دي نوم دی؟
دا فریاد چې کوي څوك دی، څه یې بوم دی؟
وې لېمو کښې مي جادو د سامري دی
افرنګینه نوم او کار مي ساحري دی
چې نا څاپه هغه رود بیا یخ بسته شو
چې هډ- هډ د هغه ځوان پرې شکسته شو
کړه یې چیغه چې های- های زما تقدیره
های افسوس! زما فریاده بې تاثیره
افرنګیني ورته وې که دي لېمه وي
ورته ځیر شه خپل اعمال به در په زړه وي

د مریمي υ ځوی څراغ د کائینات
چې يې نور ؤ هر جهت او بې جهات
فلاطوس* او غرغره او زیږ بشر
هغه څه کړل؟ او تا څه کړل؟ يې خبر
د ایمان لذت حرام دی په بدانو
اې بنده! د سپینو زرو د بتانو
تا د روح قدس بها نه پېژندله
نن د اخست د روح پنګه دي بایلله"
دې پېغور د نازنینې په یو آن کښې
مات نشتر کړلو په زړه د هغه ځوان کښې
وې چې "اې په بشر بنکلې په زړه توري!
برهمن او شیخ ګمراه کړې چې ور ګوري
عقل و دین دي دواړه خوار کړل اې کافري
عشق له تا ټکوي سر اې سوداګري
مینه رنځ ده ستا او رنځ يې هم نهان دی
ستا کینه ده مرګ او مرګ هم ناګهان دی
تا صحبت د آب او ګل دی ور زده کړی
تا په غلا د خدای بنده له خدایه وړی

* فلاطوس- د روسي حاکم نوم دی.

غه حکمت چي دِ اشياوو معرفت کا
تا ته فکر جنګيړي در عنايت کا
په دې پوه هغه سړی دی چي دانا دی
جرم ستا زما له جرمه ډېر سيوا دی
د مسيحυ په دم به روح بېرته په تن شي
خو د تا ځنې تابوت د روح بدن شي
څه چي مونږ يې د "ناسوت" سره دي کړي
خپل ملت يې د "لاهوت"* سره دي کړي
ته چي مړه شې را ژوندی به تول جهان شي
صبر وکړه کوم انجام به دي د ځان شي"

%%%

# طاسين د محمد ρ ((دابوجهل د روح ژړا د کعبې په حرم کښې))

ده سينه د محمدρ نه مي داغ- داغ
چي مړ کړی د کعبې يې دی څراغ
هم قيصر او هم کسریٰ يې دي وژلي

* ناسوت- حسم، لاهوت، روحانيت

څه ځوانان يې دي زموږ له لاسه ورېلي
څه ساحر دی هر کلام يې ساحري ده
دا دوه تکي لاالٰه هم کافري ده
د نيکونو دين يې پرېښود دا يې څه کړل؟
د خدايانو سره يې وکړل څه يې وکړل
لات" "منات" يې کړل ټوټې ژارم له غمه
دا بدل خو ترې نه ته واخله عالمه
له حاضر يې زړه غائب وته راغب کړو
هر يو زړه يې د حاضر نقشه تائب کړو
انتظار چي د غائب کوي مذموم دی
چي په سترګو ليدای نه شي وايه کوم دی؟
چي غائب ته سجده کاندي هغه کور دی
نوی دين کور او کور لري له کور دی
هغه خدای ته ټيټېدل چي بې جهات وي
وايه څرنګه بهٔ خوند د دې صلوٰة وي؟
د هغه مذهب دښمن د ملك نسب دی
دا قرېش منكر له فضله د عرب دی
په نظر يې همه لوی واړه يو شان وي
د غلام سره به ناست په يوه خوان وي

د عرب احرار یې هېر کړل ترې نه موړ دی
د حبش تورو مریانو سره جوړ دی
سره او تور یې یو تر بله خوا په خوا کړل
څه درانه خاندانونه یې رسوا کړل
مساوات او مواخات یې اعجمي دی
زه ښه پېژنم سلمانτ* چې مزدکي دی
دی دا زوی د عبدالله یې تېر ویستلی
یو طوفان یې په عربو راوستلی
د هاشم اولاد له هوډ او ننګه دوړ شو
په دې دوه رکعته لمونځ یې مخ بې نور شو
اعجمي څخه نسب د عدنان چرته؟
وایه ګونګ سره ګفتار د سحبان چرته؟
ړول ړانده شول د عربو مشران
اې زهیره!* پرې به نه ږدې ګورستان
په دې دشت کښې موږ دپاره یې دلیل ته
راشه مات کړه دا جادو د جبرئیل ته
وایه بیا سنګه اسوده وایهـ وایه

* سلمان- حضرت سلمان فارسي، عدنان- د عربو نیکه. سحبان- یو فصیح زبان عرب. مزدك- د ایران یو فصیح زبان سړی ؤ، چې یو نوی مذهب یې جاري کړی

* زهیر- د عربو مشهور شاعر.

وشو څه له محمدρ وايه ـ وايه
قبلوونکيه د بنده عذر هبله!
د خپل کور نه بې دينان وباسه خپله
دا رمه يې د لېوانو حواله کړه
دا خرمايې لا په ونه کښې ترخه کړه
مل صرصر ته د صحرا د باد سره کړه
"انهم اعجاز"✉ نخل خاويه کړه
لات منات چې لاړ نه شي د منزل نه
او که دورمي چې مي لاړ نه شي د دل نه
اې زموږ په دوارو سترګو ستا وثاق
لږ مهلت "ان کنت از معت الفراق"%

# د عطارد آسمان د جمال الدين افغاني رح او د سعيد حليم پاشا رح

## د روحونو زيارت

✉ انهم اعجاز ـ د قرآن آيت. % ان کنت از معت الفراق ـ د امرء القيس د يو شعر ټکړه چې مطلب يې دا دی چې که د جدا کېدو اراده دي کړې وي، نو لږ مهلت راکړه.

دا یو موټی خاوره وړاندي لاره په فضا کښې
ټ-ګ په ټ-ګ په خپلې تجلۍ په تماشا کښې
یا خو زه ګیر شوی یم په دام د هست و بود
یا زما په دام کښې راګیر شوی دی وجود
ځیره په فلك کښې او دا چاك به وي له ما نه
زه یم له افلاکو که افلاك به وي زما نه
یا خو دی فلك زما ضمیر دی راګیر کړی
یا زما بیدار ضمیر فلك دی را زیر کړی
پوه نه یم چي څه دي؟ څنګه دي؟ عقل مي حیران دی
زه یم په جهان کښې که په ما کښې دا جهان دی
لاړمه روان شومه په پر شوم بل آسمان ته
لاړم ور داخل شومه یو بل نوي جهان ته
دې جهان کښې هم غرونه، دښتونه، بحر او بر ؤ
دا زموږ د خاورو له دنیا دیرینه تر ؤ
داسي یو جهان چي د ایرك نه جوړ پیدا ؤ
لاس نه د آدم تر اوسه پټ پاتې تنها ؤ
نه ؤ په تخته یې د وجود لا څه نقشونه
نه ؤ څوك چي کړی یې په فطرت اعتراضونه
ما ویل رومي ح ته چي دا څنګه ښه صحرا ده

څه ښکلې په غره کښې رواني يې د دريا ده
ورک د دې دنيا نه چې د ژوند همه ښبان دی
بيا راځي له کومه دغه برغ چې د اذان دی
وې راته رومي‌رح چې دا مقام د اولياء دی
دا جهان زموږه د دنيا سره آشنا دی
کوم وخت چې آدم ؤ د جنته را وتلی
پاتې ؤ دوه ورځې دی عالم کښې غم ځپلی
دغه فضاګانې د دردو په اور ژوندۍ دي
ليدلې يې په سترګو د سپېدو د وخت زارۍ دي
دا بختور ځای دی، بختور يې زائران دي
واړه صاحبان د مقاماتو دي پاکان دي
پاک خل‌ک راځي لکه فضيل‌رح او بوسعيدرح
واړه عارفان لکه جنيدرح او بايزيدرح
پاڅه چې دا لمونځ د جماعت خو په لاس راشي
دا سوز و ګداز څه يو ساعت خو په لاس راشي"
ورغلو کتل مو دوه سړي وو په قيام
ترک يې مقتدي ؤ افغاني يې ؤ امام
پير د رومرح چې تل وي په حالت کښې د حضور
مخ يې شو روښانه په ډېر ذوق او په سرور

وې چي مشرق داسي دوه نور نه دي زېږولی
نوك يې د تدبير چي زموږ غوټي پرانستلې
دا جمال الدينؒ دی چي سيد دی د ساداتو
ژوند يې د ګفتار نه حاصل کړی کائيناتو
دا دويم د ترکو دی سالار حليم دردمند دی
فکر د هغه د خپل مقام په ځير بلند دی
دوه رکعته دوی سره کول عظيم طاعت دی
وګڼي خو کار دی چي بدل ور له جنت دی"
غه ښکلې قرات د دی سپين ږيرې بلا نوش
وې يې چي والنجم او هغه دښت ورته خاموش
دا رنګي قرات وي چي خليل وربانديي مست شي
بيا سپېڅلی روح د جبرئيلυ وربانديي مست شي
زړه پرې د سينو دننه مست شي ناقلار شي
شور د الاالله پرې له قبرونو رابيدار شي
تور لوګي له هم يو اضطراب د شعلې ورکړي
زړه له خپله سوزه د داؤدυ په شان خبر کړي
هر هغه چي غيب وي له قراته يې عيان شي
واړه راښکاره ترې حکمتونه د قرآن شي
پس له لمونځه زه له خپله ځايه پاڅېدمه

ښکل مي کړل لاسونه د هغه چي وراغلمه
وې ورته روميؒ چي "دا بځرى جهان ګرد دى
پټ د ده په زړه کښې يو جهان د سوز او درد دى
ډوب دي په خودى کښې د خپل ځان په ننداره دى
چاته يې خپل زړه ورکړى نه دى آزاده دى
کاندي به لټون د کائينات کښې ډېر مښود
ځکه له شوخۍ زه ورته وايم زنده رود"

# افغاني اوزنده رود

## افغانيؒ

وايه زنده روده! څه زموږه له خاکدانه
وايه څه خو ته زموږ له مځکي له آسمانه
خاوره يې خو ستا د فرشتو غوندي نظر دى
څه دي هم راوړى د مسلم ملت خبر دى؟

## زنده رود

وينم د ملت هغه ضمير جهان شکن کښې
جوړه ده جګړه يې په "دين" او په وطن کښې

روح يې دى مړ شوى چې كمزوري يې يقين دى
هم اوس نااميده د قوت نه د خپل دين دى
ترك دى كه عرب په فيرنګي پسې روان دى
پړى د فيرنګ دي ور په غاړه كه ايران دى
زمول زموږ مشرق شو د مغرب له سلطنته
يوړو كميونيزم خوند له دين او له ملته

## افغاني ح (((دين او وطن)))

وګوره شاطر ته د مغرب چې لوى عيار دى
جال كښې د وطن يې راګير كړى هر ديندار دى
هغه دى په فكر د مركز تا كښې نفاق دى
لري كړه دا خيال چې "دغه شام دغه عراق دى"
پوه كړه ځان په دې كه ته تميز لرې سپېڅلى
تا په خاورو ګټو پوري زړه ولې تړلى
دين څه دى؟ خو دا چې ځان د خاورو نه بالا كړه
روح دي د خپل ځان د معرفت سره آشنا كړه
څوك چې الله هو وايي هرګز نه حصاريږي
غه په دې څلور ګوټه دنيا كښې نه ځايېږي
خاورو نه پيدا وابنه له خاورو په هوا شي

حيف دی که سپيڅلی روح په خاورو کښې فنا شي
څو که ظاهر شوی دی آدم د آب و ګـل نه
ګل غوندي که اخلي رن-ګ او نم د آب وګـل نه
حيف دی چي دی تل په آب و ګل کښې راحصار شي
ښايي چي له دې مقامه پورته په رفتار شي
تن وايي مادي يې د مادې سره يار اوسه
روح وايي جهان دی بې کنار ـ بې کنار اوسه
نه ځايېږي روح په جهانونو کښې هوش منده
حُر خو بېګانه وي تل له هره قيده بنده
حر په تورو خاورو کښې ژوندون کولای نه شي
خاورې د منږک غوندي بازان لړلای نه شي
هغه موتی خاورې چي نامزد دي په وطن
ته چي ورته وايې دا ايران دی دا يمن
خود د خلګو تل د خپل وطن سره نسبت وي
ځکه چي له خاورو يې جوړ شوی کل ملت وي
اوس که دې نسبت ته نظر وکړې ښه په مينه
ځير به کړې نکته چي له وېښته هم ده مهينه
دا خو ده ښکاره چي له مشرق شي را د بره
لمر سره د شوخو پلوشو د لاؤ لښکره

اور يې ځکه بل دننه زړه کښې بې قرار دی
خلاص چې شي مشرق او په مغرب کښې ګرفتار دی
دی چې د مشرق نه را ښکاره خپله جلوه کا
داسي راخوره شي چې دنيا همه قبضه کا
اصل د فطرت نې له مشرق مغرب بري دی
څه که د نسبت نه ښکاري دا چې مشرقي دی

%%%

# اشتراکيت اوملوکيت

"صاحب د سرمايې⌧ چې غه له نسله د خليل دی
دا هم دی پيغمبر خو پيغمبر بې جبرائيل دی
په دې چې په باطل کښې يې دی پټ د حق څراغ
مومن خو يې دی زړه ولې کافر يې دی دماغ
نن وړځ له مغربي قامونو ورك دي آسمانونه
بس يو د ګېډې کار ورته هم دين هم مذهبونه
روح نه اخلي له تنه زنګ او بوی ځکه چې پاك دی
او بې له تنه وايه چې څه کار د اشتراك دی

---

⌧ صاحب د سرمايې: کارل مارکس مصنف کتاب "سرمايه" چې د اشتراکيت اصول يې په دې کتاب کښې جمع کړي دي.

يو داسي دين د هغه پيغمبر حق ناشناس دی
چي جوړ په مساواتو يې د ګيډې کل اساس دی
ته غواړې که مقام د ورورولۍ نو هغه زړه دی
دا ځکه چي بنياد يې دی له زړه له ګيډې نه دی
هم ملوکيت دی چي نفسونه پرې څاربه شي
توره يې سينه شي نور يې ختم ورك يې زړه شي
وي لکه مچۍ چي د هر ګل د پاسه ښنې بړدي
يوسي ګبيني ترينه او تشي پاڼي پرېږدي
بوی او رن‌ګ او پاڼي ښاخ د ګل هم هغه شان وي
هم يې په ښايست ژړا کوونکي بلبلان وي
پرېږده د ظاهر د رن‌ګ او بوی جادو يې څه وي
ګوره يې باطن ته چي هيڅ پاتې پکښې نه وي
مرګ د باطن نه ښکاري ليدل يې ډېر مشکل وي
ګل ورته ونه وايې معنا کښې هغه ګل وي
روح د دغو دواړو بې قراره وي پرېشان وي
نه پېژني خدای او تېر ويستونکی د انسان وي
ژوند يو له خروج بل له خراج شي په آسانه
وي انسان ښيښه د دغو دوو ګټو تر ميانه
يو نه پرېږدي ژوند په دين او علم او په فن کښې

بل د چا په لاس کښې ټوك ډوډۍ او روح په تن کښې
غرق مي دواړه وليدل په ختو کښې نسکور وي
سپین سپېځلي دي په رن-ګ دړه خو په زړه تور وي
ژوند څه دی؟ خپل ځان په سوځېدو کښې سازول وي
خاوره کښې د ژوند د زړونو تخم غورزول وي

%%%

# سعید حلیم پاشا شرق او غرب

زیرکی د مغرب خلګو لره ساز دی د ژوندون
مشرقیانو لره عشق یوازي راز دی د ژوندون
[1]چي ملګری دغه عشق د زیرکي سره کوم دم شي
را پیدا د دغو دواړو نه یو بل نوی عالم شي
پاڅه۔ پاڅه د بل نوي جهان جوړ کړه بنیادونه
ته د عشق او زیرکۍ په امتزاج کوه کارونه
[2]اوسېدونکی د مغرب په خپله توره لګېدلی

---

1 دا بیتونه نه دي ژباړل شوي: زیرکي از عشق گردد حق شناس :: کار عشق از زیرکي محکم اساس

2 دویم بیت: شغلهٔ غم افرنگیان غم خورده ایست :: چشم شان صاحب منظر دل خورده ایست

دي پراته د خپل نخچير غوندي پخپله پرهر ژلي
چي مستي او سوز ونه غواړي د دوی له انګور تاکه
نوی دور به را پيدا نه شي د هغو له افلاکه
په ژوندون کښي سوز و ساز خو ستا له اوره را اظهار دی
اوس يو بل نوی جهان پيدا کول خو هم ستا کار دی
تېي د مصطفٰی* د تجدد مي اورېدلي
چي وايي دا زاړه نقشونه ښه ښکاري وينځلي
په دې به نوی شي د کعبې رخت د حيات
که راشي د فيرنګ نه ورته نور لات و منات
د ترکو په رباب کښي چرته پاتې نوی تنګ دی
دا نوی چي ګڼي دا خو زوړ شوی د فيرنګ دی
معلومه شوه نور پاتې په سينه کښي يې دم نه ؤ
په ډېر کښي د ضمير يې چرته نوی عالم نه ؤ
هم دا يې ؤ سبب د زمانې سره چي ساز شو
د دې تهذيب له تاره لکه موم هسي ګزار شو
پيدا دی هسي رنګه طبعيت د کائينات
په بل پسې چي ت-ک شي جوړي نه نيسي حيات

* مصطفٰی- مراد مصطفٰی کمال دی.

ژوندي زړونه خلاق وي کړي پيدا نوي عصرونه
عادت چي د تقليد شي بې حضوره يې شي زړونه
په تا کښې که همت او حوصله د مسلمان وي
پخپل ضمير کښې فکر ستا نظر به پر قرآن وي
موجود په هر آيت کښې يې سل نوي جهانونه
هر آن هره لمحه کښې يې را نغښتي دي عصرونه
يو بطن يې دی تولي زمانې ته رسېدای شي
ليکن د زړه نظر دي که معنا ته رسېدای شي
بنده مومن آيت وي يو نښان د پاك مولی وي
هر يو جهان د ده د تَن دپاره يو قبا وي
قرآن يې خبردار د ژوندانه په هر هنر کا
زړه چي يې قبا د يو جهان شي بله ور کا

## زنده رود

بېړی مو بې مانګۍ ده د ساحل مو نښان چرته؟
حيران يو چي پيدا به شي عالم د قرآن چرته؟

## افغانيؒ

ورك لا يو عالم شته لا زموږه په سينو کښې
بس خو دی د "قم" په انتظار دی په راتلو کښې
نشته امتياز پکښې د ويني او د رن-ګ
روڼ لري ماښام د سپين سحر نه د فيرنګ
پاك هغه عالم دی د بادشاه او له غلامه
زړه د مسلمان غوندي بې حده بې تمامه
غه ښکلی عالم چي يې د فيضه د نظر
تخم را زرغون شولو په زړه کښې د عمر
هغه لازوال دی واردات يې نوي- نوي
پاڼي او مېوه له محکمات يې نوي- نوي
تل يې چي باطن د تغير نه وي بې غمه
شته يې په ظاهر کښې انقلاب له هره دمه
دی هغه عالم په تا کښې ښه وکړه نظر
زه يې درکوم له محکماتو دا خبر

%%%

# د قرآني عالم محکمات (1) د آدم خلافت

ښکاري دوه عالمه کښې آثار د محبت
سر د آدم زوی دی له اسرار د محبت
مه ګڼه چې راز به وي د میني له ارحامه
دی له سام او حامه، نه د روم او نه له شامه
بې شرقه بې غربه پرېوتل نه يې غروب شته
دا دی هغه ستوری چې شمال نه يې جنوب شته
یو ټکی د "اني جاعل" د ده تقدیر دی
څه چې دي له مځکې تر آسمان دا تفسیر دی
مرګ او قبر، حشر او نشر واړه يې احوال دي
نور دی او که نار د بل جهان دا يې اعمال دي
دی هغه امام، هغه صلوٰة، هغه حرم دی
هغه سپاهي، هغه کتاب، هغه قلم دی
غیب يې شي حضور خو په ورو- ورو په منزلونه
ملك يې دومره لوی دی چې يې نشته دی حدونه
بس د ده وجود شو اعتبار د کائیناتو
هم يې اعتدال ګڼه معیار د کائیناتو

څه به درته وایم د دې بې ساحل دریابه
غرقې یې په زره کښې زمانې دي بې حسابه
هغه چي ځايېږي په آدم کښې نو عالم دی
هغه چي عالم کښې نه ځايېږي نو آدم دی
لمر، سپوږمۍ يې دواړه ظاهر شوي له جلوت
لار يې جبرائيل موندلې نه ده د خلوت
لوړ د آسمانونو نه مقام دی د آدم
اصل کښې تهذيب خو احترام دی د آدم
سوال کوې له ژونده، څه خبر يې؟ چي ژوند څه دی
دا يك بينه عشق دی چي کثرت ته په کاته دی
ښځه سړي واړه محبت سره تړلي
بس له دغه شوقه جهانونه زېږېدلي
ښځه محافظه ده د ژوند د حرارت
ليک د ژوند رازونه يې په لوح دي د فطرت
اور له موږه واخلي په خپل ځان څومره ستم کا
جوړ يې خپل جوهر د دغو خاورو نه آدم کا
شته يې په ضمير کښې ممکنات د ژوندانه
دی د دې له سوزه ټول ثبات د ژوندانه
ده هغه شعله چي ډېر بڅري ترې زېږېږي

بې د دې له سوزه روح او تن نه يو ځای کيږي
دا چې په عزت وي موړه هم به په عزت يو
ځکه چې راغلي هم د دې په وساطت يو
مخکښې يې صفا کړه که در کړی خدای بصر
پسته نو پاکې ته د هغې وکړه نظر
اې چې کړې حاضري زمانې غافل له دينه
واوره د پردې په حق خبره کوم سپينه
ذوق دی د تخليق لکه چې اور وي په بدن کښې
څومره چې سيوا شي وي رونق په انجمن کښې
هر څوک چې حاصل له دغه اوره خپل قسمت کا
بيا نو د خپل سوز او هم د ساز ښه حفاظت کا
نقش په نظر کښې ساتي خپل په هر زمان
دا د دې دپاره چې پرې بل نه شي عيان
ځکه ؤ حرا کښې مصطفیٰρ خلوت نيولی
بې له خپله ځانه يې بل کس نه ؤ ليدلی
خدایΨ د دوی په زړه کښې دا زموږ نقش پيدا کړو
دا خو يې خلوت ؤ چې ملت يې ترې نما کړو
دا خو ده ممکنه چې منکر شې له يزدانه
کړای نه شې انکار د پاک نبيρ له لويه شانه

زړه که د حکیم غوندي هر څو لرې روښانه
شنډ به دي افکار وي چي خلوت نه شې انسانه
لا به دي ژوندی شي تخیل چي کم ګډون کړې
ډېر چي وي ژوندون ډېر به موندل ډېر به لټون کړې
شوق دی او که علم دا د ژوند دي مقامونه
دواړو لره خپله برخه ورکړي الهامونه
علم ته که ځیر شې د "تحقیق" نه لذت مومي
عشق وته چي ګورې د "تخلیق" نه لذت مومي
خوښ به يې جلوت وي چي صاحب وي د تحقیق
خوښ به يې خلوت وي چي صاحب وي د تخلیق
سترګو د موسیٰ چي ؤ خواهش د دیدار کړی
پوه شه چي لذت ؤ د تحقیق بې قرار کړی
شته "لن ترانيِ" کښې څه نرۍ نوې نکتې
لږ په دې ژور دریاب کښې ووهه غوټې
پر دې هر خوا پرتې دي نخښې د حیات
ډک دی د چینو نه يې ضمیر د کائینات
ګوره هنګامې او ښانې د جهانونو
مه ورکوه خدای لره زحمت د جلوتونو
نقش د نقاش ساتلې کیږي له خلوته

ګوته کښې غمی د ده ځایېږي له خلوته

# د خدایΨ حکومت

د حق چې څوک بنده وي بې پرواه له هر مقام وي
نه څوک د ده غلام وي، نه هغه د چا غلام وي
بنده چې څوک د حق وي ځوانمردي لري آزاد وي
که ملك وي که آئين وي، د هغه نو خداداد وي
همه رسم و رسوم دين او آئين يې وي د حق نه
که ښه وي او که بد، تراخه شېرين يې وي د حق نه
د غيرو د ښېګړې نه خودبين عقل غافل وي
د غيرو فکر نه کړي چې خپل سود ورته حاصل وي
لېکن د حق په وحي کښې ښېګړه د هر چا وي
نظر يې تل په سود او په بهبود زما او ستا وي
کړي عدل، که وي صلح او که جنګ وي که مصاف وي
که وصل که بېلتون وي لا يراعي* لا يخاف وي
بغير د حق نه څوك چې شي حاکم په انسانانو
جاري شي ظلم زور د زورورو په خوارانو
د دې فلك د لاندي اميري خو قاهري ده

---

* لا يراعي ولا يخاف: نه د چا رعيت کوي او نه د چا وېرېږي.

د خدای نه ما سیوا چي امیري وي کافري ده
حاکم چي وي قاهر او ورسره وي پخته کار
چاپېر کاندي له ځانه د قانون نوی حصار
جره شاهین ته ګوره چي په رپ د سترګو ښکار کا
یو چټې د مشیر په حیثیت واخلي په کار کا
بیا جوړ دغه مشیر د قاهری ورله دستور کا
یو ړوند واخلي سرمه ګویا بل ړوند ته يې حضور کا
حاصل د بادشاهانو د قانون نه وایه څه وي؟
دهقان وي وچ د دوك غوندي غټان پکښې څاربه وي
افسوس مي په دستور د فیرنګي جمهوریت دی
چي مړه وي لا يې مړه کړي د شپېلۍ يې دا صفت دی
دا ټول لکه فلك شعبده باز او ظالمان دي
ناتوان يې په چل- چل دي راګیر کړي شاطران دي
وي څوك پکښې شتمن او د افلاس په چا غمونه
هر یو د تګی اېښي وي یو بل وته دامونه
وینا به کوم سپینه چي صفا مي په زبان دي
یو موړ لکه جنونه دوی زموږ سوداګران دي
دې میني د سرو سپینو ډېري سترګي کړلې سپیني
اوس میاندي مصیبت ګني اولاد پر ځای د میني

افسوس په داسي قام به په دنيا كښې د چا ښه شي
چي شنډه كاندي ونه چي مېوه يې پيدا نه شي
په دې چي يې زخمك نغمه له تاره پيدا نه كا
دننه وي لا نې وي پيدا شوي چي يې مړه كا
ښېوې دي پكښې ډېري چي يې ګورم رنګارنګه
خو زه بې د عبرت نه به څه اخلم له فيرنګه؟
اې هغه چي يې ګير يې په تقليد كښې اوس آزاد شه
لمن د قرآن ونيسه آزاد اوسېږه ښاد شه

# مځکه د خدای ملک دی

مشرق نه تر مغربه د آدم دغه قیصه ده
د خاورې په سر جنګ دی او په هر ځای کښې فتنه ده
موږ ټول يې ښښتنان يو او هغه ناوې يوه ده
کوډګره د يو نه ده هم د هر يوه سره ده
غلط يې په نخرو مه شه همه مکرو رياه ده
دا ځلند حقيقت دی نه دي تا ده نه زما ده
کېدای شي کله روغه په انسان او په حجر کښې
دا ګټي خو سامان دی د مقيم ته يې سفر کښې
د ويښ او د ويده به وايه څرنګه ګډون وي
چي پروت وي ملګرتيا د هغه څه کړې چي په يون وي
خدای وايي چي دا مځکه ده متاع زما او ستا ده
بيا څنګه بې بها ده دا متاع څنګه ويړيا ده
ته زده کړه زميندارې دا نکته د زړه ککۍ ده
روزي او ګور ترې اخله نوره ستا نه ده پردۍ ده
يې څو به ور تر غاړه ته يې بود هغه نابوده
ته ښکاره وجود هغه نمود دی بې وجوده
"يا تور يې فکر وکړه دی دي اصل له افلاکه

ته پرانېزه وزري ځان دي ښند وهه له خاکه
لږ بطن د "الارض لله" وګوره ظاهر دی
هر څوک چې دا ظاهر نه ويني پوه شه چې کافر دی
مه پرېږده دنيا که دا دي خيال وي دا خطا دی
ټول دولت د دې جهان د رن‌ګ و بوی دي تا دی
واخله د ګوهر هره دانه د دې له خاکه
ښکار لکه باتور يې کړه تر لاسه له افلاکه
ووهه ترخځ دي د هغې په دنګو غرونو
"نور دي دځان واخله" کړه ګزار يې په اورونو
پرېږده آذري د دغې کار نه دي زړه سوړ کړه
ته د خپلې خوښي ځان له نوی جهان جوړ کړه
ته په سمي غرونه رن‌ګ و بوی د دنيا څه کړې
زړه خو د خدای کور دی چې بل چا ته يې ور نه کړې
څنګه هغه مرګ وي چې بې ګور او بې کفن وي
هغه چې په غم کښې د فرزند او زر او زن وي
هر کله عامل په لا الله چې کوم انسان شي
ورك په شخصيت کښې د هغه تمام جهان شي
فقر ده نه لوږه که بربنډه نه ګدا ده
فقر سلطاني ده رهباني واړه خطا ده

%%%

# حکمت لوی خیردی

خدای وېلي چي حکمت خیر کثیر دی
چي کوم ځای يې مومي اخله ستا جاګیر دی
علم حرف وته آواز ته، وزر ورکا
خر مهرې ته لطافت د ګوهر ورکا
شي افلاکو ته هم علم رسېدلی
شي نظر د لمر له سترګي شو کولی
د هغه نسخه هر څیز لره تفسیر دی
په تدبیر پوري تړلی يې تقدیر دی
که له دشته حباب غواړې حباب ورکا
که له سینده سراب غواړې سراب ورکا
کړي نظر په وارداتو د دنیا
چي شي بوی په محکماتو د دنیا
که په خدای وتړې زړه پیغمبري ده
که د خدای نه بېګانه شې کافري ده
که دي سوز د زړګي نه وي علم شر دی
که يې نور دی خو تیاره د بحر او بر دی

کور و کر يې له ګيسونو دا جهان شي
پسرلی يې هم وکړي ته خزان شي
سمي غرونه که سيندونه باغ او راغ دي
له بمونو د جهاز نه يې داغ- داغ دي
هم د ده نه د فيرنګ سينه کښې نار دی
خوند د ده نه د شبخون او د يلغار دی
دا دنيا روانه وي د وحشت لور ته
د قامونو سرمايه اچوي اور ته
چې قوت يې د ابليسه سره يار شي
څوکه نور دی په صحبت د نار به نار شي
مرګ مشکل دی د ابليس څه آسان نه دی
دا په دې چې پټ ژورو کښې د زړه دی
دا به ډېر ښه وي چې هغه مسلمان کړې
ته چې قتل يې په توره د قرآن کړې
بې جماله د جلال نه استان غواړه
له فراق بې د وصاله امان غواړه
علم بې عشقه وي دام د شيطانانو
او د عشق سره وي کار د لاهوتيانو
مړ حکمت دی او که علم د دانا دی

بې له عشقه عقل غشی نارسا دی
رڼوند خرد بینا د مینې په دیدار کړه
بولهب نه جوړ علي حیدرؓ کرار کړه

## زنده رود

محکمات بې تا بیان کړل له کتابه
خو هغه عالم له نه دی بې حجابه
ولې نه اخلې پرده له خپل بشر
له ضمیر مو ولې نه راځي بهر
یو عالم موږ سره زوړ او فرسوده دی
چې ملت د دې په خاورو آسوده دی
سوزد کرد او د تاتار له زړه وتلی
مړ مسلم شو که قرآن دی دم ختلی

## سعید حلیم پاشا

دین د حق د کافرۍ نه لا رسوا دی
دا په دې چې "کافر کړ" مومن ملا دی
موږ ته خپله برخه هم ښکارې چې بم دی
او هغه ته دا دریاب لکه شبنم دی

ضمير نه لري هغه قرآن فروش دی
جبرائيلυ يې هم له لاسه په خروش دی
د خاوند نه د افلاکو بېگانه دی
دا قرآن د ده په نزد يو افسانه دی
ترې نه پاتې د نبيρ د دين حکمت دی
ستوري نه لري آسمان کښې يې ظلمت دی
کم نظره دی بدذوقه بدزبان دی
ټول ملت يې له جگړو ځان په ځان دی
مدرسه، ملا، رازونه د کتاب
لکه وي مورزاديړوند نو د آفتاب
د کافر دين خو تدبير دی د جهاد
د ملا دين د الله په نوم فساد
مرد د حق چې په خلوت کښې په آرام دی
ورته ورسوه دا زما پيغام دی
اې حيات چې د مومن ستا له صحبت دی
ستا له دمه د ملت استقامت دی
اې چې حفظ د قرآن د ستا آئين دی
حق وينا کول په ډاکه د تا دين دی
ته کليم يې يې تر څو به سرنگون

د لستوڼي نه خپل لاس کړه را بېرون
قيصه ووايه د ښکلي روڼ ملت
کړه هوسئ ته د صحرا ښکاره وسعت
ستا فطرت خو نوراني له مصطفٰیρ دی
آخير وه خو وايه کوم مقام زما دی؟
عارف کله رن‌ګ او بوی اخلي د چا نه
او که اخلي مرد د حق نو له يزدانه
نوی روح د ده په تن کښې هر زمان وي
لکه حق يې په هر دم کښې نوی شان وي
دغه راز په هر مومن کړه بيا عيان
چې شي دی "کل يوم هو في شان"
بې کعبې نه بل منزل د کاروان نشته
بې د حق نه يې په زړه کښې ارمان نشته
دا مي نه دی سر کاروان په بل منزل دی
خو کاروان بدل نظر يې هم بدل دی

## افغانیؒ

خبر نه يې د نبيρ هسي فرمان دی
چې رښتونی دين "غريب" په دې جهان دی
د دې پاک تکي مطلب نه په دا شان دی

چي د دين غربت۔ غربت د مسلمان دی
هغه کس ته چي يې نيت د پوهېدو دی
د غربت مطلب ندرت د مسلو دی
د غربت شکل هر عصر کښې جدا دی
ځان پرې پوه کړه که نظر د تا رسا دی
بيا مشعل د لار کړه ځلند آياتونه
نوی عصر کړه راګير په کمندونه
د اسرار و د کتاب نه بې خبر دی
ټول شرقي، غربي په بلو۔ بلو سر دی
نن د روس خلګو پيدا نوی دوران کړو
کړه تر لاسه يې دوډی دين يې تاوان کړو
اې حق بينه، حق غوښتونکيه، حق نمايه!
هغه قام ته مي دا دوه خبري وايه

## روسي ملت ته د افغاني رح پيغام

دی منزل او هم مقصود د قرآن نور څه
خو جوړ کړی خپل آئين مسلمان نور څه
اوس د زړه هغه تاؤ هغه اور نشته
په سينه کښې يې د پاک نبيρ کور نشته

مسلمان له قرآن وانه خيسته ګټه
په پياله كښې يې شراب ښكاري نه خټه
هم يې ما ته كسرائي او قيصري كړه
هم يې بيا پخپله جوړه بادشاهي كړه
چې نهال د سلطنت شو كلك او شين
بيا نو رن-ګ له بادشاهۍ واخيستو دين
په سبب د بادشاهۍ نظر بدل شي
عقل او هوش رسم او رواج او لير بدل شي
تا چې جوړ نوی نظام لره بنياد كړو
زوړ دستور د بادشاهۍ دي چې برباد كړو
لكه موږ مسلمانانو يو كرت كړل
مات هډونه تا د دې قيصريت كړل
ته به بله د ضمير تته ډيوه كړې
كه عبرت دپاره ځير زموږ قيصه كړې
په دې جن-ګ كښې دي پښې ټينګې لره شيره
د دې لات هبل نه مه چورله چاپيره
دا زړه دنيا كړي سوال چې يو ملت وي
د بشير او د نذير په كښې صفت وي
بيا به ته را خپلوې شرقي قامونه

ستا د دوی سره ترلي قسمتونه
بلې کړې تا په ځان نوې لمبې دي
ستا ضمير کښې نوې ورځې نوې شپې دي
زوړ شو دين او که آئين ؤ د فيرنګ
دا زړه بتخانه وينه مه ستا رنګ
تا چې کار د دې خدايانو کړو تمام
کړه د "لا" نه اوس "الا" وته خرام
پرېږده "لا" که په طلب کښې ګرندی یې
د اثبات په لار کښې ځې تل به ژوندی یې
په عالم کښې چې نظام غوارې بناغلي
څه محکم غوندي احساس دي لټولي
چې د زوړ داستان دي وويڼځه هر باب
کړه د فکر روښنايي ام الکتاب
دې تور رنګو ته چا يد بيضا ورکړو
زېرې چا د لا قيصر او کسریٰ ورکړو
غلط مه شه دي جلوې يې رنګ په رنګ
ځان به بيا مومې که پرې دي شود فيرنګ
که له مکره يې خبر د مغربيانو
مزري شي پرېږدی خوی د ګيدړانو

ګیدړتوب څه دی؟ خو ځیر مه د حشمت
شېر د خدای خوښوي مرګ او حریت
بې قرآنه که شیري وي روباهي ده
قرآني فقر اصلي شهنشاهي ده
د قرآن فقر ګډون د ذکر او فکر
فکر نه مومي تکمیل بغیر له ذکر
ذکر، ذوق او شوق ته زده کړه د ادب ده
مشغله ده دا د روح نه چي د لب ده
زړه سېزونکی ترې لمبې را پورته کیږي
خو مزاج سره لا ستاسو نه جوړیږي
اې د فکر په ادا مسته ملته!
زده له ما د قرآني فکر کړه پته
دی قرآن د مرګ پیغام سرمایه دار ته
په تنګسه کښې رسېدونکې خوار و زار ته
نشته خیر له دې نامرد سرمایه داره
"لن تنالوا" به دې لوستي وي هوشیاره!
نور د "سود" نه څه جوړیږي؟ خو فتنه
څومره خوند کوي قرضه حسنه
سود پیدا د روح تیاره کړي سخت پرې زړه شي

پنځې غاښ د سړي نه وي خو لېوه شي
روزي تل له مځکې اخله دا روا دي
دی متاع زموږ چې هر څه د مولا دي
دې مومن بنده امين حق يې څښتن دی
کل هلاك دی بس ژوندی يو ذوالمنن دی
بادشاهان د خدای ښان را سرنګون کا
دوی چې ورشي ښار او کلي خوار زبون کا
که خوراك مو دی که څښاك له يوه خوا دی
بس "کنفس واحدة" همه انسان دی
چې قائم په دينا نقش د قرآن شو
که کاهن ؤ که پاپا ؤ کار يې وران شو
اوس په جهر وايم هر څه مي په زړه دي
بنه خبر شه دا کتاب نه دی نور څه دي
دا چې ځان کښې شي دننه ځان بدل شي
ځان د چا چې شي بدل جهان بدل شي
دا د حق غوندي هم پټ او هم پيدا دی
هم ژوندی او هم قيوم او هم ګويا دی
د مغرب، مشرق تقدير شي جوړوای
ورته ځلند فکر بنه شي رسېدلای

مسلمان ته وايي دا په تلي سر کړه
چي دي زيات وي د حاجت نه هغه ور کړه
تا کړو جوړ نوی آئين نوی جهان هم
لږ يې ځير کړه په رڼا کښې د قرآن هم
د ژوندون د زېر و بم نه به خبر شې
د ژوندون د هر تقدير نه به خبر شې
که محفل مو بې شرابو بې ساقي دی
لا په ساز کښې د قرآن خو ژوند باقي دی
که زخمك مو بې اثره هر ګزار کا
ورله خدای به نور پيدا هزار۔ هزار کا
د[3] حق ذکر پامتدار د ذاکر نه دی
احتياج يې روم او شام ته وايه څه دی
که يې واخلي خدای له موږه يې بهر کا
په دنيا کښې بل يو قام ته به يې ور کا
په مسلم کښې يو تقليد او درېيم ظن دی
له دې خياله په لړزان زما بدن دی
زه وېرېږم چي محروم به يې مولا کا
خپل الفت بهٔ په يو بل زړه کښې پيدا کا

---

3 دا بيت نه دی ژباړل شوی: ذکر حق از امتيان آمد غني :: از زمان و از مکان آمد غني

%%%

# د روم پیر زنده رود ته وایي: "چې شعرونه واوره"

هغه پیر د روم چې جذب او درد پا تر سره
پوه یم چې یې حال شو د زړه څه په دې خبره
آه یې داسي وکړو تا به وې غوښ یې ځیګر شو
وینو د شهید غوندي د اوښکو په پرهر شو
هغه چې پېرل یې غشي زړونه د مردانو
مخ یې افغاني ته کړو وې یې په لبانو
ښایي چې موږ زړه سور لکه شفق کړو
تېر د همت لاس چې و فتراك وته د حق کړو
زړه مو په امید لکه وله هسي روان دی
ترك د امید مرګ دی او مرګی هم جاودان دی
بیا یې ما ته وکتل ویل یې "زنده روده"
بل یې اور په زړه کړو له دوه بیته له سروده
اوښه مو ده ستړې او درنه مو کجاوه ده
لا ترخه نوا ښایي ساروان ته چې تنګسه ده
تل د پاکو خلګو امتحان په بلا کیږي
تږي چې لا تږی کاندي دا هم روا کیږي

پاڅه د کليم په شانې تېر په رود نيل شه
اور ته ور روان په روڼ تندي لکه خليل شه
بوی د خپل آشنا چي وي د هر چا په نغمه کښې
بيايي يو ملت د آشنا درته په شېبه کښې

%%%

# دزنده رودغزل

دا ګل او لاله خو به ته وايې چي مقيم دي ټول
دا دي لاروی ګويا موجونه د نسيم دي ټول

نوې معنا غواړه، پيدا نه شوې وايه چرته دي
شته دی ميخانه، مسجد، مکتب خو شنډ عقيم دي ټول

زده کړه د خپله زړه نه د مطلب تکې پتنګ شه پرې
دا منجاوران دلته بې سوزه د کليم دي ټول

مه وايه د دوی د صفائي خو راته مه وايه
دا تکيه نشين، ببروېښته ګنده ګليم دي ټول

ګوره علماء چې بې بل حرم کړو جوړ
یو مني څښتن په خوله په زړه باندې دوه نیم دي ټول

بده نه ده دا چې هنګامه د محفل یخه شوه
ګرانه خو شوه دا چې بې خونې او بې ندیم دي ټول

# د زهرا فلك

زموږه او د لمر د رڼا منځ کښې دې زرګونه
پراته دي یو په بل د فضاګانو حجابونه
زوږندی زموږ په مخکښې سل رنګه پردې دي
تاؤ د دې پردو نه آتشي غوندې جلوې دي
دا د دې دپاره دي چې زور د تاؤ یې کم شي
تاؤ یې چې د پاڼو بوټو فصل لره سم شي
تاؤ نه یې پلو کښې د لاله وینه چلیږي
رقص نه یې ولې هم د پارې غوندې ځلیږي
دغسې پاك روح دی چې د خاورو نه عیان شي
پسته نو په لور د بې لوری د رومي روان شي
لاره کښې یې مرګ او حشر وي حشر او مرګ وي
تاؤ د محبت ورله توښه وي ساز او برګ وي

بره په سلګونو فضاګانو د آسمان کښې
وخوري غوټې وخوري بیا بهر په یوه آن شي
دی د ځان حریم او هم پخپله ابراهیم دی
خپله اسمٰعیل غوندي خپل ځان ته په تسلیم دی
نه آسمانونه ورته نه خیبرونه
تل یې د مقام نه د حیدر وي ګزارونه
پر له پسې دا مجاهده چې وکړي پاك شي
داسي هم محکم شي هم سیار شي هم چالاك شي
بیا یې نو پرواز په فضاګانو کښې د نور شي
پنجه کښې راګیر یې جبرائیلυ ملك او حور شي
دلته یې مازاغ البصر* برخه شي سرشار شي
راشي په مقام د عبده جوړ څوکیدار شي
هیڅ پرې نه پوهېږمه چې کوم مقام زما دی
دومره یم خبر چې د یارانو نه جدا دی
جن‌ګ را کښې دننه یې سورو پلو نه سر دی
ویني یې زما غوندي صاحب چې د نظر دی
نور ترې یې خبر دي جن‌ګ د کفر او د دین دی
ځان مي ورته ګوښی لکه زین العابدین دی

* مازاغ البصر: د دې آیت شریف تلمیح ده: مازاغ البصر وماطغٰی.

نه څوك له مقامه نه له لاري خبردار دی
بې زما د برغ نه چې څراغ د حق د لار دی
ډوب دی په درياب کښې که ماشوم که ځوان که پير دی
بس خو ځان ساحل ته پوري ويستی يو فقير دی
څومره چې پردې وې لري ما کړې له زندانه
ويره کړم له وصله هم ژړېږم له هجرانه
وصل که د شوق په نتيجه کښې حاصلېږي
اې زما فرياده بې اثره څه به کيږي؟
بيا د لاروي نه به د لاري څه لټون شي
مينه بې د زړه چې په راحت او په سکون شي
زړه هغه لرم چې غواړي ما نه هر زمان
ذوق د ننداري مي دم په دم نوی جهان
بس خو يو رومي‌رح خبر د زړه په حال زما دی
وې چې "بل عالم غواړې؟ نو راشه واخله دا دی"
مينه ده شاطره زه په لاس کښې يې مهره يم
ګوره اوس په وړاندي په هيواد کښې د زهره يم
دا دی يو عالم لري خمير له آب و خاکه
پټ په تور غلاف کښې لکه پټه کعبه پاکه
اوسېزه پردې د خپل نظر د برق په ځير شه

منځ د لړو شخړو کښې دې لار جوړه کړه تېر شه
وه به وینې هلته پخواني زاړه خدایان
پېژنمه هلته چې دی ځومره ځانه ځان
"بعل" دی "مردوح" دی او "یقوق" او "نسر" "فسر"
"لات" دی او "منات" دی او "رم خن" او "عسر" "غسر"
بیا د خپل ژوندون دپاره ګوري بهانې
مل یې دی مزاج د بې خلیله زمانې

%%%

# د پخوانو قامونو د خدایانو مجلس

تېزه وه هوا توره وریځ لکه بلا وه
ورکه په تیارو کښې یې د تندر نه رڼا وه
زوړند یې هوا کښې یو دریاب ؤ لر و بر
څیري یې لمن وه خو کم توی ترې نه ګوهر
ورک یې ؤ ساحل او ؤ په زړه کښې یې موجونه
دوی د هواګانو سره هم کول جنګونه
زه او رومي دواړه "نن زړو" د سیند په میان کښې
وو لکه چې خیال وي د ضمیر په شبستان کښې
زوړ دی په سفر هغه زما نوی سفر ؤ

ځکه په لېمو کښې بېقرار زما نظر ؤ
هر ساعت به ما وېل نظر مې نا رسا دی
و نه لیدو ما هغه عالم وایه کوم خوا دی
ان تر هغه وخته چې کوهسار مو په نظر شو
څه ښکلي چیني او مرغزار مو په نظر شو
سل سپرلي په غېږ کښې د صحرا او د کهسار وو
راغلل چې یادونه همه واړه مشکبار وو
ډېري يې نغمې وې د مارغانو زړه را ښکونکې
ښه تنکي وابښه ښکلې چینې وې بهېدونکې
ډېر يې د هوا نه پاینده د سرې تن ؤ
روح به لا بینا ؤ څو دننه که په تن ؤ
ما پرې نظر واچوو د غر له یوې څوکې
ښکلي غر، کمر او دښت يې کړی د نظر شوکې
څه ښکلي کڅۍ وه نه يې نشیب نه يې فراز
کړلو د دې خاورو د ژوندون اوبو نیاز
شته زاړه خدایان په کښې هر یو ځان ته څښتن دی
هغه خدای د مصر دی او دا رب د یمن دی
هغه له اربابو د عرب دا له عراق دی
دا الٰه الوصل دی هغه رب الفراق دی

دا د لمر د نسل نه او ځوم دی د قمر
هغه په ځښتن د مشتري لري نظر
هغه يو په لاس کښې يې ده توره دوه مخونه
هغه بل له غاړې تاؤ را تاؤ لري مارونه
هر يو ترهېدلی له قرآني ذکر جميل دی
زړه سوری د هر يوه له ګزاره د خليلu دی
او بل مردوخ انسان له خدايه تښتېدلی
هم له کليسا هم د کعبې نه اوړېدلی
څو يې چې ادراک او په نظر کښې ارتقا شي
هومره به د کفر پخواني دوران ته راشي
اوس ورته خوندناک هغه زموږ زاړه آثار دي
اوس زموږ په ذکر انسانان واړه سرشار دي
بله افسانه نوې اوس واوري له دورانه
باد د مراد راغلو د خاورو له جهانه"
ډېر د خوشحالۍ نه "بعل" وکړه سرودونه
نورو خدايانو ته يې وې زموږ رازونه

## د بعل سندره

تیت په تیت انسان کړل واړه مځکې آسمانونه
خدای يې بیا هم ونه موند که تېر شو له ګردونه

وایه د آدم په زړه کښې څه دي بې افکارو
يو لکه چپه کړي سر اوچت او بل رمونه

زړه يې تسله اوس په محسوس څیزونو کاندي
بېرته را واپس به شي زموږ هغه دورونه

تل دي وي ژوندی چې فیرنګی مشرق شناس دی
موږ يې چې همه کړو د لحد نه رابېرونه

شابه اوس مو وار دی اې خدایانو پخوانو
ماته ده حلقه د موحدو مومنانو
ذوق د الست هېر د ابراهیم له فرزندانو
غونډه يې خوره ده جام يې تول ريزې- ريزې دی
پرېښووه باده د جبرائیلυ هغه مستانو
بند شول په اطرافو کښې مردان چې آزاده وو
پرېښودو یزدان وطن کړو خوښ مسلمانانو
اوس يې سپیني تښتي د کفارو له دبدبه

خوښ کړل زنارونه د حرم هم پیرانو
شابه اوس مو وار دی اې خدایانو پخوانو
ورځي په موږ بیا په جهان راغلې د طرب
دین خوړلې ماتې ده له ملك او له نسب
ویره د څراغ له مصطفیٰρ نه زموږ څه ده؟
شته چي یوك وهلو ته یې سل ابولهب
بې شکه چي اورو لا صدا د لااله
ووته له زړه اوس به تر کومه وي پر لب
بیا بدي ژوندی کړله جادو د فیرنګیانو
ورځ د یزدان زېړه ده د ویري نه د شب
شابه اوس مو وار دی اې خدایانو پخوانو
ښایي چي د دین د تېرسري نه اوس آزاد شي
دا چي اوس زموږه بندګان دي چي ډېر ښاد شي
هسې هم د لمونځ ادا کول ورته ډېر سخت دي
بس خو یو رکعت بې له سجدو به ور ارشاد شي
چرته چي نغمه وي هلته خود لوړه جذبه وي
بې سروده لمونځ څه بې مزې غوندي فریاد شي
هغه خدای چي پټ وي او په سترګو لیدای نشي
ښه به ترې یو دیو وي که په سترګو باندي زباد شي

شابه اوس مو وار دی اې خدايانو ښخوانو

## د زهرا سيند ته ورکوزېدل او هلته د فرعون

## اوکچنر د روحونو ليدل

پير د روم هغه صاحب چي د "ذکرِ جميل" وو
شان يې د ګداز لکه ګزار چي د خليلυ وو
دا غزل يې ووې په مستئ او په سرور کښې
هر ښخوانی خدای په سجده پرېوت په حضور کښې

%%%

## غزل

بيا په تېر شوي په راتلونکي پوخ نظر دی پکار
هله بيدار شه فکر بيا د لر او بر دی پکار

مينه د وخت په اوښه خپله کجاوه سموي
د عاشقئ مرکب له شام او له سحر دی پکار

ما ته خپل پیر ویل دنیا پر یوه لاره نه ځي
بیا د هغې خوبښ او نا خوبښ ته څه نظر دی پکار

ترك د دنیا دي که لازم کړو د دنیا دپاره
نو بیا صبا دزړه نه خیال د سر بهر دی پکار

ما ورته وې لات و منات مي دی په کور کښې د زړه
وې چي دا کوو د دې بتانو کنډ کپر دی پکار
بیا یې ما ته وویل چي "پورته شه پسره"
ونیسه لمن زما روان شه د زړه سره
ګوره مخامخ دا یې کلیمه کوهستان دی
واورو نه انبار د سپینو زرو جوړ عیان دی
شاته یې دریاب دی چي الماس غوندي ځلیږي
دډ یې نه ظاهر نه لا په بنه شان څرګندیږي
نه یې له څپو او له طوفانه څه خلل شته
تل یې په مزاج کښې یو سکون د لم یزل شته
دغه دی مقام د "ظاهر خوبنو" سرکشانو
دا د زوروړو د غایب د منکرانو
هغه یو له شرقه دی او هغه بل له غربه

کار يې د نيکانو سره نشته بې له حربه
هغه يو سر کوزی د امسا نه د کليمυ دی
هغه بل په تيغ د يو دروېش ګوره دوه نيم دی
دا وړوکی هغه لوی دی دواړه فرعونان دي
دواړه سمندر کښې تړي مړه په يوه شان دي
مرګ خو د هر چا شته له ترخو به يې آشنا شي
مرګ د ظالمانو ښاڼې د پاك مولا شي
ما پسې راځه د هيڅ بلا نه مه وېرېږه
لاس په لاس کښې راکړه د هيچا نه مه وېرېږه
څېري د موسیٰ غوندي سينه به د دريا کړم
تل ته به دي کوز کړمه ستا غوږه به سودا کړم
بحر نو بيا موږ ته خپله غېږه پرانستله
يا خو وه هوا لکه اوبه معلومېدله
تل د دې درياب يوه کڅۍ بې رنګ و بويه
وه تياره خوره په دې کڅۍ کښې ډېره لويه
پير د روم په خوله چې د طٰهٰ هلته سورت کړو
سيند کښې را پيدا شوله سپوږمۍ ورك يې ظلمت کړو
غرونه يې وينځلي يخ نيولي وو عريان وو
لاندي پکښې دوه سړي حيران او پرېشان وو

دوارو يو نظر په رومي واچاوه اوتر شول
بيا نو په خپل منځ کښې يو او بل ته په نظر شول
وويل فرعون څنګه سحر او څنګه نور دی؟
دا د څه سحر دی؟ او دا نور د چا ظهور دی

## روميرح اوفرعون

### روميرح

پټ چي کوم يو څيز وي هم د ده ځني نما دی
اصل د دې نور نه دی بل څه يدِ بيضا دی

### فرعون

حيف چي ما د عقل سره دين هم وبايللو
هغه نور مي وليد خو ما ونه پېژندلو
راشئ بادشاهانو زما حال وته نظر کړئ
راشئ زيان کارانو زما حال وته نظر کړئ
حيف په هغه قام چي خپل هوس يې نابينا کا
سپړده د قبرونو د ګوهرو له سودا کا
پروت په ندارتون کښې چي نن کوم وچ شوی تن دی

سر په یو داستان په څپو شونډو په ګفتن دی
خل-ک خبروي د بادشاهت له ظلم و جوره
وايي چې نظر زما نه واخله راشه ګوره
نور په بادشهت کښې څه مقصد دی؟ خو شقاق دی
ځان مضبوطول دي او په خلګو کښې نفاق دی
وران دغه عمل کاندي تقدیر د هیوادونو
ګډوډ او باطل کاندي تدبیر د هیوادونو
بیا کلیم الله که چرته وینم یو وار
غواړمه یو زړه ترې چې هغه وي خبردار

## رومي رح

بې د زړه د نور نه حاکمي وګڼه خامه
بې یدِ بیضا نه بادشاهي هم ده حرامه
زور کښې حاکمي وي چې ناتوان يې محکومان وي
منډ يې وي قوي چې پکښې خل-ک عاجزان وي
ژوند د تاج په باج وي چې يې څوک ومني سپک شي
کاڼي غوندي سخت سړی ښیښې غوندي نازک شي
فوځ دی که زندان دی که زنځیر دی رهزني ده
حقه بادشاهي د دې سامان ځنې غني ده

# ذوالخرطوم

قام د فيرنګي سره بلند وو مقصدونه
لعل و جوهرو له يې نه سپړده قبرونه
مصر او فرعون او د کليم معاملې
دوی زوړ آثارو کښې زړې قيصې کتې
علم او حکمت څه دی؟ خو کشف د اسرار دی
بې د جستجو نه که حکمت وي نو هم خوار دی

## فرعون

قبر نه زما خو يو تاريخ معلومېدلو
قبر د مهدي دي څه دپاره وسپړدول

# د سوډاني درویش روح څرګندیږي

پرق شو او بېتابه يو برېښنا شوه په اوبو کښې
هره څه وينه شوه ګډا شوه په اوبو کښې
مستي وړمې راغلې د جنت له ګلستانه
روح ښکاره د مصر د درویش شو له يو خوا نه
تاؤ نه يې صدف هر ګوهر په ويلېدو شو

کاڼی زړه سینه کښې د کچنر په ویلېدو شو
وې چې "فکر وکړه اې کچنره بد انجامه
شوې خبر له خاورو د درویش له انتقامه
قبر فلك در نه کړلو خاورو ستا و تن ته
تل دي ترېو دریاب کښې د مرقد جوړ شو بدن ته"
بیا یې په یو حرف مرې غریو ژنه شوه له غمه
آه یې په خوله راغلو له ځیګر قلم قلمه
وې ویل چې اې د عرب روحه را بیدار شه
ته لکه نیکونه د صاحب د اقتدار شه
واوره که "فواد" یې که "فیصل" یې که "سعود" یې
یو بل سره نښتي به ترڅو لکه د دود یې
بل دي په سینه کښې مرغېژن پخوانی خس کړه
کومه ورځ چې تللې هغه بېرته را واپس کړه
اې حجازي خاورې یو "خالد" نوی پیدا کړه
هغه د توحید نغمه شروع له سره بیا کړه
اې چې خرماګانې د صحرا دي نه شنديږي
ولې بل "فاروق" وایه له تا نه څرګنديږي
اې د مشکې مخیو مومنانو پاك جهانه!
بوی د دوامت ما له را درومي ستا له ځانه

وايه په جمود کښې به تر څو پروت يې سرګومه
وي به دې تقدير د غير په لاسو کښې تر کومه
کله خپل مقام ته به راځې؟ درومي وختونه
ژاړي په درياب کښې مي شپېلۍ غوندي هډونه
ويره له بلا مه کړه وينا د مصطفیٰ ﷺ ده
"هغه پاکه ورځ وګڼه ورځ چې دي بلا ده"
ځي ياران يثرب ته موږه نجد ته ساروانه
داسي يو نغمه چې اوښه مسته کړي روانه
وشولو باران پيدا د مځکي نه سبزه شوه
سسته هم په دې وجه شايد زموږ ناقه شوه
زړه مي دی په چيغو د بېلتون له ډېره غمه
څه په هغه لاره چې سبزه وي په کښې کمه
اوښه خواهش منه د شينکي زه د آشنا يم
هغه ستا په لاس کښې زه په واك د دلربا يم
وګوره اوبه چې خورې شوې په صحرا دي
هم وني په غرونو يې وينځلې څه صفا دي
هغه دوه هوسۍ چې يو په بل پسې زغلېږي
وګوره چې پاس د يو غونډۍ نه راکوزېږي
څه په ترهه منډه د چينې نه اوبه شومي

بيا د خپلې لارې په تکل په مخه درومي
شګه د وربښمو غوندې نرمه له بارانه
لاره د اوښانو قدمونو ته آسانه
پرونه دي د څوړې که وريځ کړې کړې ده
لرې له مقامه يم ويربړم چې جړې ده
ځې ياران يثرب ته موږه نجد ته ساروانه
داسې يو نغمه چې اوښه مسته کړي روانه

# د مريخ فلك د مريخ اوسېدونكى

ما يوه لحظه کړې سترګې پټې په اوبو کښې
لاړمه له خپله ځانه لرې په اوبو کښې
ګډه مې کړه پورته له دې ځايه بل جهان ته
يومې وړله هغه بل زمان او بل مکان ته
لمر مې آفاقونه د هغې دنيا رڼا کړل
ورځ او شپه يې هلته په يو بل ډول پيدا کړل
تن خو لا د روح له رسم و شا نه خبر نه دى
اوسي په زمان کښې له زمانه خبر نه دى
روح د هر يو سوز سره آشنا وي څه چې وي
وخت يې د خوښۍ او د خندا وي څه چې وي

نه زرېږي دی د ورځو شپو په الوتو
ورځې دي رڼا د ده د نور په ځلیدو
دی په ورځو شپو کښې هم ګردش عیان د ده نه
وپېژنه هغه چې دی هر جهان د ده نه
یو ښکلی چمن ؤ په کښې لوړه رصدګاه وه
ګیره په کمند کښې د دوربین یې ثریا وه
ما وې که راغونډ دی په دې ځای نهه آسمانه
یا دی یو تور داغ زموږ د مځکې یې ګمانه
کله لټول مې د دې مځکې وسعتونه
کله مې فضا ته د آسمان کړل نظرونه
پیر د روم چې پیر دی د هموو سترګورو
وې چې "دا جهان دی د مریخ" د بختورو
مځکې غوندې دلته هم جادو د رنګ و بوی شته
کلي شته ښارونه شته دښتونه غر او کوی شته
دلته چې مېشته دي د فنونو خاوندان دي
علم کښې د روح او د تن واړه کاملان دي
ډېر یې په مکان او په زمان باندې قدرت دی
ځکه چې یې علم د فضا کښې مهارت دی
داسې را تاؤ شوي له وجود د دې جهان دي

واړه خم و پېچ يې د فضا ورته عيان دي
ګير د آدم زادو زړه په خاوره په اوبه دی
دلته ټول بدن د قيادت لاندې د زړه دی
هر کله چې زړه په اوبو خاورو کښې منزل کا
هر څه يې چې خوښه وي هغه په آب و ګل کا
کار دی دا د روح مستي او ذوق او که سرور دی
دی له روحه جسم لره غيب دی که حضور دی
جوړ زموږ جهان کښې روح او تن نه يو وجود دی
روح دی بې نموده خو د تن ښکاره نمود دی
روح او تن زموږه په مثال مارغه قفس وي
دلته په مريخ کښې يو اندېښه هر يو کس وي
دلته چې د مرګ نېټه د کوم يو را نزدې شي
ډيري را پيدا د سوز او شوق په کښې لمبې شي
ورځ دوه آګاهو له خپله مرګه حال عيان کا
بيا نو خبردار له خپله مرګه څو کسان کا
روح د هغوی نه دی پرورده د اندامونو
ځکه عادت نه دی په مزه د اندامونو
تن په روح کښې جذب کړي ساه بنده کړي پنا شي
پټ شي پخپل ځان کښې د جهان څنې جدا شي

پوهه يم چي لري ستا له عقله دا سخن دی
ځکه چي ستا روح په غلامۍ کښې د بدن دی
ښه نو دوه ساعته خو آرام دلته پکار دی
داسي ښه فرصت چا له ورکړې کردګار دی؟

## د مريخ د نجومي د رسګاه نه بهر راوتل

يو بوډا سړي ږيره د واورو غوندي سپينه
عمر يې خوړلی د حکمت علم په مينه
تېز نظر په مثل د مغرب د دانايانو
داسي يې جامه لکه وي پير د عيسايانو
ډېر عمر خوړلی لوړ او دنګ لکه د سرو
مخ يې کړه برېښنا لکه ترکان چي وي د مرو
پوه په رو ګودر، رسم و رواج د هر طريق ؤ
فکر يې له سترګو ښکارېده چي ډېر عميق ؤ
ده چي سړي وليدل د ګل غوندي شېراز شو
بيا نو دی په ژبه د فارسي سخن طراز شو
دا د خاورو ختو صورت قيد د "څه او څو"
راغلو له دنيا د "لاندي باندي" په خستو
خاورو ته الوت مي بې جهازه نه ورزده کړ

ور مي ثوابتو ته جوهر د سياره کړ
نطق ۀ که ادراک يې د ولې غوندي روان ۀ
زه ورته حيران ومه ګفتار يې هسي شان ۀ
خدای زده چي دا خوب ۀ او که نه افسون ګري وه
خوله د مريخي وه ترې جاري فارسي دري وه
وې چي يو سړی ۀ زمانه د مصطفٰیρ کښې
دلته ۀ په شمار د مريخانو باصفا کښې
بس چي جهان بين نظر يې کښته په عالم شو
شوق يې پيدا زړه کښې دې دنيا ته د آدم شو
بر په فضاګانو کښې پرانستې په پرواز شو
آن چي بيا راکښته په صحرا کښې د حجاز شو
وې ليکل چي ده وليدل هر څه لر او بر کښې
نقش يې د جنت د باغ په څير ۀ په نظر کښې
زه هم پاتې شوی يم فرنګ او په ايران کښې
هم په ملک د نيل او په ګنګا د هندوستان کښې
هم مي امريکه ليدلې هم چين او جاپان
ما کړی لټون د معدنياتو د هر کان
زه د شپو او ورځو نه د مځکې ښه خبر يم
زه يې بحر و بر کښې پاتې شوی په سفر يم

تېر چي په انسان دي هغه پټ نه دي زما نه
هيڅ نه دی خبر انسان له ما زما له شانه

# رومي رح د مریخ حکیم

## رومي رح

زه یم فلکي خو دا ملګرې مې له خاکه
ډک دی له مستۍ خو بې خبر له انګور تاکه
نوم یې "زنده رود" دی بې پروا غوندي انسان دی
مست په تماشه کښې د وجود په هر زمان دی
نن په اتفاق چې یو ستا ښار وته راغلی
یو که په جهان کښې له جهانه یو وتلی
موږ یې په لټون یو چې جلوې وي نوې- نوې
لږ راسره مل شه چې ښکاره شي پټې شوې

## د مریخ حکیم

دغه مرغدین دی چې مقام د "برخیا" دی
هغه "برخیا" چې کوم زموږ ابوالابا دی
لاړو "فرامرز" چې لمسوونکی بد کردار ؤ
ورغلو جنت ته برخیا ته په اختیار ؤ
وې ویل چې "دلته ته لا څرنګه خوشحال یې؟
ټول عمر محکوم چې د یزدان یې په ملال یې

ستا له دې مقامه شته نور ښکلي عالمونه
دي ورته سپرلی د يو ساعت دا جنتونه
شته داسي جهان له هر جهانه بالا تر دی
بس هغه جهان له لامکانه بالاتر دی
داسي يو عالم دی چي يزدان ترې خبر نه دی
بل داسي آزاد جهان زما په نظر نه دی
هلته خپل نظام دی نه چي خدای پکښې د خيل دی
هلته نه کتاب شته، نه رسول، نه جبرائيل دی
نه هلته قيدونه د طواف او د سجود شته
هلته دعاگاني نه لمونځونه نه درود شته"
ووې "برخيا" ورته چي "چي پاڅه جادوگره
ځه هغه عالم دي مستفيد کړه له منتره"
بس نو چي آبا مو دا فريب ونه خوړلو
حق ځکه بل نوی جهان موږ ته وسپارلو
وگرځه دې ملك کښې چي بخشش د کردگار دی
وگوره آئين د "مرغدين" چي ښکلی ښار دی

%%%

# په مرغدين* ښار کښې ګرځېدل

بهر د مرغدين لوړې ماڼۍ څه خوش منظر ؤ
څه به درته وايمه چې څومره بختور ؤ
خلک يې همه لکه ګبين شيرين زبان ؤ
ښه ښکلي مخونه نرم خوی ساده يو شان ؤ
فکر يې کامل بې له کړاؤ د اکستابه
پوه په جوړولو د کميا وو له آفتابه
څنګه چې مور مالګه جوړوو تروو اوبو نه
دغسي دوی سره سپين جوړوي د پلوشو نه
دلته چې مقصد دی کوم په علم او په هنر کښې
دې خلوت د خلګو زر يې نشته په نظر کښې
نه ترې څو خبر نه يې نظر شته په درم کښې
لار د دې بتانو ممکن نه ده په حرم کښې
نه دلته غالب په طبعيت دي مشينونه
نه يې د لوګو نه دي تور شوي آسمانونه
دلته د دهقان ډيوه ده بله چې محنت کا
دلته جاګيردار شته او نه ځان شته چې غارت کا

* مرغدين: په مريخ کښې د يو ښار نوم دی.

دلته کرونده کېږي نه يې جن-ګ په اوبه خور دی
فصل بې شريکه د هغه دی چې يې کر دی
نشته دی لښکر په دې دنيا کښې نه غوغا ده
نه روزي ګټلې دلته چا په شوکه غلا ده
نه په مرغدين کښې قلم مونتی دی تشهير
چرې په دروغو خورولو په تحرير
نه په بازارونو کښې غوغا د بې کارانو
نه پکښې نارې او جګجګې د ګدايانو

# حکيم مريخي او زنده رود

## حکيم مريخي

هيڅوک په دې ځای کښې نه سائل او نه محروم شته
مرېي شته نه څښتن او نه حاکم او نه محکوم شته

## زنده رود

دا د حق تقدير دی چې سايل هم به محروم وي
دا يې هم تقدير دی چې حاکم هم به محکوم وي

بې له لويه خدايه بل خالق د تقدير نشته
ځکه په تقدير باندي هيڅ زور د تدبير نشته

## حکيم مريخي

تا ته که شي پيښنه ناکامي په يو تقدير کښې
غواړه بل تقدير له خدايه مه ګرځه په وير کښې
بل نوی تقدير که ترې نه وغواړې روا دي
ځکه د تقديرونه خو د خدای بې انتها دي
دې بني آدم خپله خودي هم وبايلله
حيف چي يې نکته د تقدير ونه پېژندله
پټ په دې کښې رمز دی که پو يې په محفل شې
هغه بهٔ بدل شي خو که تهٔ چرې بدل شې
ځان دي که کړو خاوره تا به باد په تار په تار کا
ځان دي که کړو تيږه په ښيښنه به دي ګذار کا
ته که شولې پرخه په تقدير دي پرېوتل دي
ځان دي که درياب کړو پائيدل دي تل تر تل دي
تل چي آشنائي ساتې د لات او له مناته
غواړې د بتانو نه ثبات اې بې ثباته
څو بې خبري چي له خپل ځانه ستا ايمان دی

دغه د افکارو خپل عالم در له زندان دی
ته چي وايي "رنج دی بي له ګنجه" دا تقدير دی
کله وايي "ګنج دی بي رنجه" دا تقدير دی
دا که د دين اصل وي او دا يي وي بيان
لا به محتاجان له دغه دين شي محتاجان
حيف په هغه دين شه کوم چي در ولي خوبونه
بيا دي وينښېدو ته هم پرېښږدي په کالونه
دا سحر افسون دی را ته ووايه که دين دی
ګوره چي افيون دی را ته ووايه که دين دی
پوهه په دې نه يي چي رسا طبع له څه وي
واوره چي د خاورو په کنډر کښې حوره نه وي
فکر کښې قوت د حکيمانو وي د څه نه؟
ذکر کښې طاقت د کليمانو وي د څه نه؟
دا زړه او په دې زړه کښې واردات ګوره له چا دي؟
دا ښکلي فنون او معجزات وايه له چا دي؟
تا کښې څه ګرمي که د ګفتار ده له تا نه ده
ډېره که برېښنا دي د کردار ده له تا نه ده
دا واړه عطا خو د بهار نه د فطرت ده
بيا فطرت عطا د کردګار نه د فطرت ده

څه دی دا ژوندون؟ خو د ګوهرو ښکلی کان دی
ته امانتګر يې او څښتن يې پاك سبحان دی
مرد د حق هغه وي چي يې طبع وي روښانه
وي خدمت د خلګو يې مقصود بې دريا نه
دا د خدمت رسم په تحقيق د پيغمبر دی
مزد چي د خدمت غواړي هغه خو سوداګر دی
دغسي پټي وريځې، خاوره، که هوا ده
باغ، که ګټه، خښته، آبادي ده که صحرا ده
اې هغه سړيه! ته چي وايې دا زما دي
بس کړه اې ناپوهه دي تا نه دي د مولا دي
مځکه د الله ده وايې ته زما جاګير دی
بيا نو د لا "تفسدو"* خو وايه څه تفسير دی؟
زړه د بني آدم د ابليسی په لوري زغلي
ما خو يې فساده په کښې هيڅ نه دي ليدلي
هيڅا امانت نه دی پخپله کارولی
ښه هغه چي مال د حق يې حق ته وي سپارلی
تا واخستو هغه څيز چي ستا ملکيت نه دی
سوزم له دې کاره دي دا ستا د حيثيت نه دی

* لاتفسدوا: تلميح په آية شريف: لاتفسدوا فی الارض بعد اصلاحها.

ته که د يو څيز مالك يې واېې خلې روا دی
او که مالك نه يې او تر لاسه يې کړې خطا دی
ملك د بېچګون که حواله د پېچګون کړې
حل به ته دا دواړه مشکلات د خپل ژوندون کړې
بيا نو مسکيني، فقيري ولې په دنيا دي؟
ځکه چې د خدای مالونه ته واېې زما دي
څوك له خاورو، ختمو چې بهر نه شو يو ځله
خپله ښيېنه ده پخپله ګټه ووېشتله
پاتې يې دا لار او د منزل له امتيازه
هر شی بها مومي د کتني له اندازه
ته يې چې متاع ګڼې ګوهر ځکه ګوهر دی
وګڼې دا کاڼی د کونجکې نه کمتر دی
خپل نظر بدل کړه، دا جهان به هم بدل شي
مځکه که بدله شي آسمان به هم بدل شي

## د مريخ د هغې پېغلې حال چې د رسالت دعوه يې کړې وه

موږه د کوهو او د مانو نه تېرېدلو
بيا يو لوی ميدان ته د دې ښار و رسېدلو
جمع ښځې نر وو سره ډېر په دې ميدان کښې

ونې د انار غوندي يوه ښځه وه په ميان کښې
مخ يې ؤ روښانه، خو ارواح يې ؤ بې نوره
وه خپله وينا يې د معنا څخنې نفوره
وچې کلکې سترګې او بيان يې بې اثر ؤ
زړه يې د آواز د خوشحالۍ نه يې خبر ؤ
تشه يې د جوش نه د ځوانۍ پرته سينه وه
عکس يې قبلوای نه شو، ړنده يې آئينه وه
نه له عشق خبره، نه آګاه يې له آئين وه
ګويا چې سپېر کنډه وه، رد کړې چې شاهين وه
وې حکيم چې: "پوهه يې دا پېغله څه ده؟
وې چې "دغه پېلغه د مريخ د وطن نه ده
ګوره څه ساده او بې فريبه ده له رنګه
دا را تښتولې فرامزده له فرنګه
ښه يې پخه کړې ده، په کار د نبوت کښې
بيا يې دې عالم ته ده را وستې په حکمت کښې
وايي چې يم زه، نازله شوې له آسمانه
ومنۍ دعوت مې که زه يم آخير زمانه
تل د نر او ښځې له مقامه يې سخن وي
وايي به جهر کوم اسرار چې د بدن وي

دا آخر زمان چي ېي اصول د ژوندانه دي
زه به د آدم په ژبه ووايم چي څه دی؟

%%%

# د مریخ د پیغمبر وعظ

واورئ خویندو، میندو اې همه وارو زنانو
څو پوري به ژوند کوئ په شان د دلبرانو
دغه دلبري خو په جهان کښې مظلومي ده
څه ده دلبري خو محکومي او محرومي ده
وګرځوئ زلفو کښې شانه دا مو سنګار دی
دا په زړه کښې وګڼو سړی زموږه ښکار دی
شي هم دا سړی ستاسو صیاد چي مو نخچیر شي
ګرد چي ورته ګرځي مینه نه ده دا زنځیر شي
دا ېي لوی فریب دی چي له تاسو قربانیږي
دا ېي واړه مکر دی چي سوزي او دردیږي
دا منم چي جوړ هغه کافر درنه حرم کا
تاسو مبتلا مګر د ټول عمر په غم کا
واورئ ملګرتیا د ده کړاؤ د خپل حیات وي

وصل د ده زهر او فراق د دې نبات وي
پام کوئ دا مار دی، هسي نه چي دا به ښه شي
ګورئ چي مو وینه کښې دا زهر خواره نه شي
مور چي شي زېږون بې کاندي زيړه مړځپنه
مخ شه د هغې چي وي آزاده بې څښتنه
پر له پسې وحي رائي ما ته له یزدانه
زیات مي لا لذت پرې د ایمان شي د پخوا نه
راغلو هغه وخت چي اوس اعجاز دی په هر فن کښې
اوس بچي دننه لیدای کیږي په بدن کښې
کښت نه به د ژوند اخلې حاصل چي څه دي زړه وي
وایه په زامن لوښو کښې ستا د خوښې څه وي
بیا چي مخالف مو له مراده کوم څښتن وي
مرګ به يې روا بې له صرفې زموږ په دین وي
پس د دې نه نورې زمانې به داسي راشي
نور نوي رازونه به عالم کښې را نما شي
بیا په نوي ډول به بچي روزلي کیږي
بې د مور له رحمه به هم ښه روزلي کیږي
ختم اهرمن چي شي او هم يې افسانې شي
مړ لکه ډنګر د هغې تېرې زمانې شي

بیا دا ریدي ګلې، بې له داغه لمن پاکه
سر به بې پروا له پرخي پورته کړي له خاکه
شي د ژوندانه اسرار به ټول په خپله بې حجابه
تار د ژوند به واورَوي نغمه بې له مضرابه
پام چي د نیسان نه شې صدفه پامته دار
ته د سیند په تل کښې ترِی مرِ ښه يې نامدار
جن‌ګ کړه له فلك سره زره کلك کړه له فولاده
ستا د جن‌ګ په زور چي دغه وینځه شي آزاده
بېله له سري شه ته توحید ته اورسېږه
ځان ساته پخپله په مردانو مه نازېږه

## رومي رح

دا نوی دوران، نوی آئین لره حامل دی
ګوره لا دیني یې د تهذیب ځنې حاصل دی
ژوند دپاره شرع که آئین دی هغه عشق دی
اصل تهذیب دین دی او چې دین دی هغه عشق دی
ګورې چې ظاهر یې سوزوونکی آتشین دی
ځیر یې که باطن کړې نور د رب الْعلمین دی
تاؤ نه د رڼا نه د باطن یې علم او فن دی
ذوق د فن یې دا، چې انجمن یې علم او فن دی
دین به نه شي پوخ بې د آدابو نه د میني
دین واخله صحبت نه د اربابو نه د میني

%%%

# د مشتري فلك

## (د حلاج غالب او قرة العین طاهره پاك روحونه چې د جنت استوګنه یې قبوله نه کړه او دتول عمر مزل یې غوره کړو)

سر مې دې د خپل لېوني زړه ځنې قربان وي
نوې ویرانه راته حاصله هر زمان وي

چرته چي دمه شم واېي پاڅه مشه غلی
بحر ورته ډنډ وي چا چي ځان وي پېژندلی
ځکه چي د خدایΨ لا انتها دي ښانونه
نشته مسافره د دې لاري پایاوونه
کار د حکمت دا دی چي څيز ويني بیا هېر کړې
کار د عرفان دا دی چي يې ګورې لا يې ډېر کړې
هغه معلومېږي ښه په تله د هنر کښې
دا تللی کېږي ښه، په تله د نظر کښې
هغه به په خاورو په اوبو اقتدار در کا
دا به د پاك روح د پېژندني بېرته ور کا
هغه تل نظر په تجليو ور ګذار کا
دغه تجلې په ځان کښې ورکې په يو وار کا
تلمه په لټون د مسلسلو جلوو تلمه
يو ؤ په افلاك، لکه شپېلۍ به ژرېدمه
دا خو واړه فيض ؤ د هغه چي پاك فطرت ؤ
سوز ؤ د هغه چي زما زړه ته عنايت ؤ
دا دوه کاروانيان چي د وجود وه ورته پته
راغلل په سرحد د مشتري کښې شول راښکته
نه د دې جهان چرته کښې غاړې ښکارېدلې

ډېري وې سپوږمۍ تر ګېر چاپېره چور لېدلې
تشې يې د تاك ښيښې له ميو ښکارېدلې
لا خو يې آرزو نه وه له خاورو توکېدلې
شپه لکه غرمه يې په سپوږميو نوراني وه
نه يې په هوا کښې وه يخني او نه ګرمي وه
څه ګورم چې پاس يې په آسمان څه ننداره دي
ستورى يې و موږ ته د نزدې نه هم نزدې دي
روح يې په هيبت د ننداره داسي حيران شو
"څنډ ؤ او که زړ، که نزدې، لري ؤ بل شان شو
درې روحه مي وليدل چې هر يو ؤ سپېڅلى
اور يې د سينې واړه جهان شولو سېزلى
درې واړو اغوستي لاله رنګ وو څادرونه
سوز نه يې د زړونو ځلېدل ښکلي مخونه
ډوب په سوز ګداز کښې دوى له ورځې د الست وو
درېواړه د خپل ځان د نغمه په ميو مست وو
وې راته روميؒ چې مخکښې مه ځه دوه قدمه
دا آتش نوا دى ته يې ژوند واخله له دمه
بې غرضه شوق وګوره تا ليدلى نه دى
ګوره يې تا زور د دې صهبا ليدلى نه دى

دا غالب، حلاج، او دا خاتونه د عجم ده
زړه کښې اچولې غلغله يې د حرم ده
چيغې يې په روح کښې لوی ثبات پيدا کوينه
سوز يې سوز د زړه د کائينات پيدا کوينه

## د حلاج نوا

طلب له خپلې خاورې هغه اور کړه چې پيدا نه دی
د غير د تجلې طلب خو ښخ د تقاضا نه دی

جلوې د يار که واخستو جهان په سر خبر نه يم
په ځان کښې يمه ورك پاتې فرصت د تماشا نه دی

په ملك به زه د جم د نظيري دا مصرعه ور نه کړم
"چې څوك په عشق کښې مړ نه شي، له موږ نه دی له ما نه دی"

منم چې ډېر لښکر را جمع کړی جادوګر عقل
خبر شه زړه په ځای لره چې عشق دي هم تنها دی

نه بلد د لاري يې، مقام نه ناخبر يې ته
له هيڅ ډول سندرې تش رباب د سليمٰی نه دی

خبري تل د ښکار او د نيوو د نهنګانو کړه
دا مه وايه کشتۍ زما ليدلې لا دريا نه دی

مريد يمه د هغه لاروي چې يون پرې نه کاندي
پر هغه لار، پکښې چې چرته غر، دښت و دريا نه دی

شريك اوسه حلقې کښې د رندانو باده نوشو ته
مريد د هغه پير مه شه صاحب چې د غوغا نه دی

## د غالب نوا

دا زور ډول راځئ چې دا آسمان وګرځوو
مرګی په جام د ميو سرګردان وګرځوو

هيڅ دار نه دی پکار د داروګير نه د کوتوال
سلطان ته ور واپس چې ارمغان وګرځوو

كليمυ كه مو مجلس ته رانزدې شي ځان ترې چپ كړو
په بېرته د خليلυ غوندي مهمان وګرځوو

مليار كه غواړي باج زموږ د بوټو نه په جنګ
ټش لاس يې له غنچو د ګلستان وګرځوو

په صلح او په امن خپلو جالو ته واپس
بې كوره د ښاخونو نه مرغان وګرځوو

كېداى شي زه او ته چي پېروان يو د حيدرτ
دا نمر بېرته مشرق ته په يو آن وګرځوو

## د طاهرې نوا

مخ په مخ كه پرېوځي په تا زما نظر
كړم به دي له غمه له وېښته ـ وېښته خبر
سر دي په ديدن پسې په شانې د صبا يم
كور په كور كوڅه په كوڅه ګرځم در په در
هجر كښې مي ستا اوښكې روانې له دوه سترګو
سيند په سيند چينه په چينه هر خوا لر و بر

ستا مهر مي زړه دی په نداف د روح اوبدلی
تار په تار رشته په رشته ورو۔ ورو سر تر سر
بې تا ظاهرې دی د زړه کتاب کښې څوك او نه موند
کربښه۔ کربښه پاڼه۔ پاڼه کل واړه دفتر
سوز و ساز همه د دې خوږمنو عاشقانو
نوی شور پیدا زما په زړه کښې کړو یارانو
تېرو مشکلاتو را بهر کړل بیا سرونه
و یې کړل زما په عقل فکر شب خونونه
بحر مي د فکر سر تر پایه اضطراب شو
زور د طوفان داسي چي ساحل يې هم خراب شو
وويل روميؒ چي وخت ونه باسې له لاسه
ای د هرې غوټې پرانستل چي غواړې پاڅه
څو به يې په دې خپلو فکرونو کښې اسیره
وغورزوه بېرته دا قیامت له خپل ضمیره

## زنده رود پاکو اروا حانو ته خپل مشکلات وړاندي کوي

ته د مومنانو له مقامه ولي دور يې؟
یعني د جنت نه د فردوس ولي مهجور يې؟

# حلاج

هغه آزاد مرد چي ښه په ښو بدو پوهيږي
روح د هغه چري په جنت کښې نه ځائيږي
حوري او غلمان خو وي جنت د ملايانو
تل تر تله سير کول جنت د آزادانو
خور او خوب جنت وي د ملا او سرودونه
سير د وجود تل وي د عاشقو جنتونه
قبر چاودېدل په بږغ د صور د ملا حشر
عشق پخپله شور دی هر سحر يې لکه نشر
علم په بنياد ولاړ د خوف او د رجا دی
څوک چي وي عاشق د دغو دواړو نه رها دی
علم دی په ويره، په جلال د کائينات کښې
عشق همېشه غرق وي په جمال د کائينات کښې
علم په تېر شوي او حاضر باندي نظر کا
عشق وايي ښه دا چي څه راځي تېيت ورته سر کا
علم اقراري وي په آئين باندي د جبر
بله لار يې کومه بې له جبر او له صبر
عشق دی ناصبور او هم آزاد او هم غيور دی

بیا نو د وجود په تماشه کښې هم جسور دی
عشق چې دی زموږه د ګلو نه بېګانه دی
بیا سره د دې هم په ژړا کښې مستانه دی
مه ګڼه مجبوره که مجبوره زما زړه دی
غشی چې زما دی له نظر د حوري نه دی
تاؤ مي لا سوا کړې ځکه خوښ زما هجران دی
خوښ مي دی هجران ځکه چې روغ زما په ځان دی
بې له سوزه ژوند ته که ژوند وایې ژوندون نه دی
اور چې د تلو لاندې وي بل ژوندون هغه دی
بس دغه ژوندون دی چې تقدیر دی د خودۍ
بیا په دې تقدیر باندې تعمیر دی د خودۍ
لمر شي، که ذره وي، چې يې شوق شي بې پایانه
بیا يې شي سینه کښې ځائېدای نهه اسمانه
شوق چې په شب خون د کوم عالم د پاسه راشي
څو که وي فاني هغه عالم په لا فنا شي

## زنده رود

مرګ دی او که ژوند دی د ګردش نه د تقدیر دی
څوك زده! چې ګردش د تقدیر څه؟ څه يې تفسیر دی

# حلاج

چا سره چي پنګه ښه وافره د تقدير وي
مړک دی که ابليس دی د هغه نه ګډ په وير وي
جبر به يې دين وي کوم صاحب چي د همت دی
جبر د مردانو د کمال نه د قوت دی
پوخ چي کوم سړی وي لا به نور پوخ شي له جبره
خام سړي ته جبر به څه کم نه وي له قبره
جبر د خالد چي وي عالم اوړچوينه
جبر چي زموږ وي بيخ بنياد مو نړوينه
کار د مېړنو وي يو تسليم بله رضا ده
سمه په کمزورو باندي کله دا قبا ده
ته يې څه خبر چي کوم مقام د پير د روم دی
ته تري واقف نه يې چي کلام د پير د روم دی
وايي چي يو ګبر ؤ په وخت د بايزيد
ووې يو ملګري مسلمان ورته سعيد
څومره به دا ښه وي ته صاحب که مسلمان شې
لاره د نجات درته ښکاره شي مسلمان شې

وې ویل "هم دغه که ایمان وي اې مریده!
کوم چي څرګند وینم زه له شېخه بایزیده
زه نه هومره توان او نه طاقت وینم د ځان
دومره عقیده په وس کښې نه ده د انسان

((رومي رح))

کار زموږ د عامو بې له خوف او رجا نشته
هر چا کښې همت خو د تسلیم او رضا نشته
اې هغه! چي واېي چي کېدونکي وو دا وشول
دا وو ټول کارونه د قانون د قضا وشول
ته نو د تقدیر په معنا کم یې پوهېدلی
نه خودي لیدلې تا او نه دي خدای لیدلی
نیاز لري مومن له خدایه واېي دا په نیاز
"زه درسره ساز یم ته هم شه راسره ساز"
عزم د هغه چي وي تقدیر د پاك مولا دی
غشی د هغه په جنګ کښې غشی د الله دی

## زنده رود

څه فتنې خورې کړې کم نظرو څنګه کار کړ
کوم چي ؤ د حق بنده هم هغه یې په دار کړ

راز چي د وجود ؤ هغه تا و ته عيان ؤ
ووايه اخير شوې د تا نه كوم عصيان ؤ

## حلاج

زړه كښې زما پروت د اسرافيل د شپېلۍ غږ ؤ
يو ملت مي ولید قصد د ګور يې ؤ په زوړ ؤ
كوم چي مومنان وو په خوی بوی كښې كافران وو
وې يې لااله او له خپل ځانه منكران وو
دا به يې ويل چي روح فاني دی او باطل دی
ځكه چي د آب و ګل د تن سره شامل دی
بل د دې دپاره د ژوند اور مي په خپل ځان كړ
راز د ژوندانه مي هغو مړيو ته عيان كړ
جوړه د خودئ په زور هغوی نوې هستي كړه
بيا د دلبرئ سره يې ګډه قاهري كړه
هر چرته ښكاره ده خو بيا هم نه پيدا كيږي
دا خودي هغه ده چي په سترګو نه ښكارېږي
پټ هغه اوورونه دا د نور نه د هغې دي
دا د كائينات جلوې د طور نه د هغې دی
هر يو زړه چي وګورې په دې زاړه جهان كښې
تل كوي ستائنه د خودئ په خپل۔ خپل شان كښې

چا يې چې له اوره برخه وانخسته خړ شو
دی له خپله ځانه بېگانه په جهان مړ شو
هند او که ایران وای له نوره يې محرم دي
هغه چې دا اور يې پېژندی شي واوره کم دي
ما کړل خبردار چې دا يې ناز او دا يې نور ؤ
اې بنده محرمه! بس هم دا زما قصور ؤ
وويرېږه ما چې څه کول هغه کوې ته
بس خو یو محشر په دغه مړيو راولې ته

## طاهره

هر کله گناه چې له صاحبه د جنون شي
نوی کائينات یو د هغې نه را بېرون شي
شوق چې وي بې حده همگې څېرې پردې کړي
هيرې زړې ورځې کړي را نوې تماشې کړي
دار يې په آخیر کښې په نصيب وي ور ورسيږي
در د خپل حبيب نه پخپل ژوند نه را ستنيږي
وگوره دا نور يې خور په ښار او په صحرا
هسي نه چې ويې گڼې تېر له دې دنيا
پټ بيا په ضمير کښې دی د خپل دور اوسيږي
خدای زده چې په دې خلوت کښې څرنگه ځايیږي؟

# زنده رود او غالب

## زنده رود

اې! چې ته خوږمن يې د لټون راته ووايه
ته د دغې خپل شعر مطلب ما وته ونمايه
"قمري ده موټې خاورې او بلبل قفس د رنګ دی
فرياده نښان ووايه د سوي ځيګر کوم دی؟

## غالب

سوز نه د ځيګر چې د هر چا وتلی وير وي
ما وليد چې هر ځای يې جدا۔ جدا تاثير وي
وسوزي سپوږمۍ يې د تاثير نه لکه شمع
بل خوا ترې بلبل ښکلي رنګونه کړي راجمع
مرګ هم په هغه کښې جوړ په غېږ کښې د حيات وي
دلته يو نفس که وي حيات، هلته ممات وي
دا شانې يو رنګ، نګارخانه چې وي د څه نه
دا شانې يو رنګ چې بې رنګي وي د هغه نه
ته نه يې خبر چې دا مقام د رنګ او بوی دی

**هر زرہ لا قسمت په اندازه د های و هوی دی**
**تېر په بېرنګۍ شه یا د رن-ګ سره را درومه**
**نخښنه ته د سوز نه د ځیګر خو څه اومومه**

%%%

## زنده رود

سل جهانه جوړ په دې اوچته شنه فضا شته
دوی کښې هر جهان ته اولیاء او انبیاء شته

## غالب

وګوره په غور لږ ته دې بود او نابود ته
پر له پسې یو جهان او بل راځي وجود ته
چرته چې عالم وي او پیدا يې هنګامه وي
پوی شه رحمة اللعالمین به ورسره وي

## زنده رود

ووایه صفا چې زما فهم نا رسا دی

## غالب

څوک چې دا خبره صفا ووايي خطا دی

## زنده رود

ولې ګفتګوی د عارفانو بې حاصل وي؟

## غالب

## زنده رود

ته خو سر تا پا د طلب له سوزه اور يې
کړې نه شي خبره جوړ غالب نه يې څه نور يې

## غالب

خلق دی که تقدیر* که هدایت دی ابتدا ده
پوی شه رحمة اللعالمین یې انتها ده

## زنده رود

لا تر اوسه مخ مي د معنا لیدلی نه دی
اور که در سره وي ما پرې وسېزه ډېر ښه دی

## غالب

ما غوندي واقفه د اسرار څنې د شعر
دا خبره زیاته نه ده د تار څنې د شعر
ښکلی چي مجلس کړي په خبرو شاعران دي
لاس د بیضا یو نه لري داسي کلیمان دي
غوارېږ چي يې ته خبره دا د کافری ده

* خلق و تقدیر: تلمیح ده په دې آیت شریف: خلق فقد و هدٰی.

هغه کافري چې ما ورا له شاعرۍ ده

## حلاج

چرته چې جهان د رن‌ګ و بوی ورته نما وي
هغه آرزوګاني يې له خاورو چې پيدا وي
يا خو ښکلی نور د مصطفیٰρ به ور عطا وي
يا به لا تر اوسه په لټون د مصطفیٰρ وي

## زنده رود

ستا نه کړم تپوس که دا تپوس مې څو خطا دی
راز د هم هغه جوهر چې نوم يې مصطفیٰρ دی
دی هغه آدم او که جوهر په هست و بود کښې
هغه کله کله چې را دروميي په وجود کښې

## حلاج

څو که ټول عالم ورته سجده کړي موړ منلې
ځان ته يې پخپله "عبده" دی فرمايلې
پوهي نه مفهوم د "عبده" دې بالاتر دی
دا په دې چې هغه هم آدم او هم جوهر دی
دا جوهر د هغه عربي نه عجمي دی

دی دغه آدم، هم د آدم نه پخواني دی
"عبده" هغه چې ترې ظاهر شول تقدیرونه
دي موجود هغه کښې ویرانې او تعبیرونه
عبده ژوندون دی هم فنا کړي د ژوند ختښه
عبده ښیښه هم دی او هم یو درنه ګټه
عبد دی جدا او عبده ګورې جدا دی
موږ منتظر، هغه منتظر زما او ستا دی
دهر دی له عبده او دهر عبده دې
موږه واړه رن‌ګ یو او هغه بې رن‌ګ و بو دې
عبده سره د ابتدا بې انتها دی
نه د عبده سحر ماښام زما او ستا دی
څوك د عبده له رازه وایه خبر څه دی؟
عبده له بې سر د الاالله نه نور څه نه دی
لااله ده توره عبده بې غوڅه ستا یم
هو عبده وګڼه که سپینه درته وایم
عبده په اصل حقیقت د کائینات دی
عبده خو راز د نهایت د کائینات دی
کله دا مطلب څرګندېدای شي له دوه بیته

ځو يې چې او نه کسې له مقام د "مارمیتَ"*
ځو به ګير يې ګفت او په شنود کښې زنده روده
راشه کنه غرق شه په وجود کښې زنده روده

## زنده رود

کم په عيش پوهېږم راته وايه دا څه کار دی؟
ذوق که د ديدار وي نو بيا وايه څه ديدار دی؟

## حلاج

دا مطلب له ديد نه د هغه آخر زمان دی
بس چې دی منلی د هغه حکم په ځان دی
ژوند په دې جهان لکه رسولρ د انس و جان کړه
ځان په دې سبب سره مقبول د انس و جان کړه
بيا وګوره ځان ته دا ديدار د انحضرتρ دی
يو راز له رازونو د هغه ښکلی سنت دی

## زنده رود

وايه اوس ديدار د خدایΨ د نهو آسمانونو
پاتې يې بې حکمه لمر، سپوږمۍ له ګردشونو

---

* مارميت: تلميح ده په دې آية کريمه: ومارميت اذ رميت الخ.

# حلاج

مخکښې چې د خدای صفت په خپل ځان کښې پيدا کړي
بيا يې د جهان و نورو خلګو ته نما کړي
څوك د خدای په خوی چې مکمل په دې جهان شي
خلګو ته ديدار د ده ديدار د پاك سبحان شي
زار له هغه مرد چې يې د "هو" د يو نعرې نه
کړي نهه افلاکه طوافونه د کوڅې نه
حيف شه په هغه درويش چې "هو" ي-ې له خولې ويست
بيا يې دواړه شونډې کړلې بندي دم يې نه ويست
حکم د اللهΨ يې په جهان کښې جاري نه کړو
روټه يې خوړه خو خوی يې خپل د عليτ نه کړو
تېښته يې له خيبر وکړه تکيه يې جوړه کړله
ترکه يې دنيا کړه ده شاهي ونه ليدله
خوی دي که د حق دی دا جهان به دي نخچير وي
هم ستا د تدبير سره ملګری به تقدير وي
جن-ګ درته دا نوی عصر غواړي ځان خبر کړه
خوی د حق نه نقش په تختۍ د دې کافر کړه

%%%

## زنده رود

خوی د حق به څرنګه خوریږي په جهان کښې
وایه دا به څرنګه پیدا شي په انسان کښې

## حلاج

یا خو به په زور د دلبرۍ را پیدا کیږي
یا به په قوت د قاهرۍ را پیدا کیږي
دا ځکه چې حق په دلبرۍ کښې زیات نما دی
کار د دلبرۍ د قاهرۍ ځنې اولٰی دی

## زنده رود

اې! چې ته خبر یې د مشرق د کل اسراره
فرق به په زاهد، عاشق کښې څه وي خبرداره؟

## حلاج

هر څوک چې زاهد وي په دنیا کښې به غریب وي
څوک چې وي عاشق نو په عقبٰی کښې به غریب وي

## زنده رود

ولې انتها د معرفت جوړې نیستي ده
تلونکی جوړ فنا نه په آخر کښې زندګي ده؟

## حلاج

خود به بې نشې وي چې يې تشه پیمانه وي
نېست به وي چې څوک د معرفت نه بېګانه وي
اې! چې په فنا کښې د مقصود په لټون ګرځې
څنګه په عالم کښې د موجود په لټون ګرځې

## زنده رود

هغه چې خپل ځان یې له آدمه ښه ګڼلو
خم کښې يې شراب، او نه يې خبري پاته شولو
زه که موتې خاورې وم آشنا شوم له آسمانه
وایه څه شو اور د هغه بې سر و سامانه؟

## حلاج

کم کوه تپوس د فراق ژونو د سردار
تږی ازلي په جام د سرو وینو سرشار
موږه ناپوهان یو، هغه پوی په نېست او هست ؤ
کفر يې کړو پوی په هغه راز چې دی پرې مست ؤ

خوند د لږه تږ د پرېوتو نه پیدا کیږي
خوند خو د راحت د درېدو نه پیدا کیږي
دا ده عاشقي چې يې په اور کښې سوی ته يې
څو يې چې ونه سوزې په اور کښې سوی نه يې
ځکه چې په عشق او په خدمت کښې مقدم دی
حق ده چې آدم يې له اسرارو نا محرم دی
راشه کنه! څیري دا قمیص دي د تقلید کړه
دا به درته ووایم چې زده ترې نه توحید کړه

## زنده رود

اې د زړه جهان دي په فرمان، پر تا رحمت شه
بس یوه شیبه راسره نور هم په صحبت شه

## حلاج

نه مي شته تسکین نه د مقامه سره ساز یم
بس خو سر تر پایه ذوق او شوق زه د پرواز یم
کار مي هر زمان دیدن کول او سوزېدل دي
بیا نو بې وزرو الوتل او ګرځېدل دي

%%%

# د فراق جنو سودا او ابلیس څرګندېدل

زړونه چې روښان لري صحبت يې یو دوه دمه
زیاته سرمایه ده، د وجود او له عدمه
عشق يې په ګرمۍ کښې افزون تر کړو لاړو تېر شو
عقل يې څښتن د لوی نظر کړو لاړو تېر شو
سترګې مي کړې پټې چې محفوظ يې وساتمه
بیا به يې د سترګو له مقامه زړه ته وړمه

ناڅاپه چې ګورمه جهان واړه تيارهٔ شو
دا همه مکان تر لا مکان واړه تيارهٔ شو
بيا پهٔ هغه شپه کښې را ښکاره يوهٔ شعله شوه
بيا پکښې څرګنده د يو زوړ سړي څېره شوه
توره سرمې يې وه قبا دا يې نمود ؤ
پټ يې تور لوګي کښې سر تر پايه ټول وجود ؤ
ووېل روميؒ د فراقجنو سردار دا دی
سر تر پايه سوز د زړه په وينو سرشار دا دی
کمه يې خندا زوړ يې بدن کم يې سخن ؤ
سترګوته يې روح ښکاره دننه په بدن ؤ
رند ؤ خرق پوش ؤ، هم حکيم ؤ هم ملا ؤ
وخت کښې د عمل به لکه کلك زاهد نما ؤ
زړه يې بېګانه بېخي د ذوق نه د وصال ؤ
زهد يې ترك کړی پاك جمال د لا يزال ؤ
بس نو چې مشکل يې له جماله خلاصېدل ؤ
ترك د سجود کار يې پخپل مخکښې اېښودل ؤ
راشه لږ خو ته په واردات يې نظر وکړه
ګوره يې تنګسې او په ثبات يې نظر وکړه
بوخت په اخ او ډب د خير او شر دی لا تر اوسه

سل نبیان يې ولیدل کافر دی لا تر اوسه
سوز نه د هغه مي تن کښې زړه وسوزېدلو
خولې ته يې غمژن یو اسویلی را پورته شولو
ما وته يې نيم پرانستې سترګې کړې را پورته
دی عمل کښې څوک را رسېدی شي زما لورته
داسي د کارونو په غمونو کښې لګیا یم
زه په جمعه هم له فرصته نا آشنا یم
هيڅ زما دپاره فرښته او نه چاکر شته
ما دپاره وحي بې منت د پیغمبر شته
نه ما یو کتاب او نه حدیث چرته را وړي
هم د فقیهانو شیرین زړونه مي بیا وړي
پرې بهٔ د دین شولولو چا؟ بې د فقیهانو
خښتې۔ خښتي کړه کعبه آخر کښې نادانانو
داسي خو زموږه د مشرب نه دی تاسیس
نشته فرقې نشته په مذهب کښې د ابلیس
تېر چې د سجدې نه شومه واوره بې خبره
جوړه مي باجه کړله له خیره او له شره
ونه ګڼې دا چي زه له خدایه به منکر یم
وګوره باطن مي په دې مه شه چي ظاهر یم

دا بې وقوفي ده، که زه ووایم چې نشته
پسته له لیدلو به څه ووایم چې نشته
ما خو په پرده کښې دی د "لا" "بلیٰ" ویلي
ښه له نا ویلو دي هغه چې ما ویلي
درد زما په زړه کښې چې دپاره د آدم ؤ
ده ته مي پرې نه ښود د یار قهر ؤ که غم ؤ
پورته مي له کشته شوې لمبې شرر باری ته
اورسېد انسان د مجبورۍ نه مختارۍ ته
ما چې خپل بدوالی ښه په ډاګه را اظهار کړو
تا لره حاصل مي ذوق د ترک او د اختیار کړو
راشه د دې خپل اورځنی ما ته نجات راکړه
اې آدمه! دا د مشکل غوټه زما وا کړه
اې زما په بند کښې ګیره فکر وکړه ځان ته
تا موقع ورکړې د عصیان وه و شیطان ته
اوسې چې جهان کښې نو همت د مردانه کړه
اې زما غم خوره ژوند زما نه بیګانه کړه
تېر شه بې پروا زما د نېش او نوش له زوره
لا عمل نامه چې زما نشي نوره توره
چرته چې وي ښکار هلته ښکاري هم ګیر چا پیر وي

ته چي تر څو ښکارې زما غشي به هم ډېر وي
څوك چي الوتای شي نه پرېوزي خواري نشته
ښکار که ځان په عقل بچ کوای شي ښکاري نشته
وې مي ورته تېر شه د آئين نه د فراق
"ټولو نه خراب څيز دی زما په نيز طلاق[4]
وې سوز د فراق دې چي نغمه يې زندګي ده
ښکلي د فراق د ورځي څنګه سر مستي ده
نه راځي خبره مي د وصل په خوله ښه يم
او که غوارم وصل نه به هغه نه به زه يم
حرف د وصال څه ؤ؟ چي له ځانه بېګانه شو
تت يې چي په زړه کښې سوز او درد ؤ را تازه شو
او چورلېدو يو ساعت چابك په خپل لوګي کښې
بيا نو پس د دې نه شولو ورك پخپل لوګي کښې
بيا له دې لوګي اوچت په غريو کښې دا سخن شو
"مخ د هغه کس دی چي په زړه باندي خوږمن شو"

%%%

# دابليس ژړا

4 ابغض الاشياء عندي الطلاق مشهور حديث دی.

اې د کل نېکانو او بدانو کردګاره!
سر شوم په صحبت کښې د آدم په کړه لاره
هیڅ کله زما له حکم سر نه ګرځوینه
پټې سترګې یون کوي خپل ځان نه پېژنینه
خاوره کښې یې پاتې چرته ذوق د ابا نشته
هم پکښې بڅري د غرور کبریا نشته
ښکار پخپله دا وایي ښکاري ته ما اسیر کړه
ما خو په امان له دې بنده فرمان پذیر کړه
خدایه له دې هسې رنګه ښکار نه مې آزاد کړه
هغه پخوانۍ طاعت زما خو را په یاد کړه
ټیټ د ده دپاره زما ختۍ لوړ همت شو
څومره مصیبت شو خدایه څومره مصیبت شو
خام فطرته! کلکه اراده کولای نه شي
دا حریف زما خو یو ګذار زغملای نه شي
چرته که څښتن وي د نظر زما پکار دی
پوخ چې وي حریف او ډېر زړور زما پکار دی
دا د خاورو ختو ګوډاګۍ واخله زما نه
نه کېږي پېښې د ماشومانو د بوډا نه
ځوی د آدم څه دی؟ خو بس یو موټی د خس دی

دې یو موټې خس ته زما یو بڅری بس دی
دلته چې دا خس ؤ دومره زور دې ولې راکړو
زور دې ولې راکړو دومره اور دې ولې راکړو
څوك چې ښيښنه ويلي کاندي دا ورلره عار دی
هوکه چرې ګټه کاندي ويلي دا یو کار دی
دومره یم تن-ګ شوی له دې تشو فتوحاتو
تا لره اوس راغلم په غرض د مکافاتو
ما نه چې منکر وي هغه کس غواړم د تا نه
هغه یو ځوان مړد خو راته وښايه یزدانه
داسي بنده غواړم چې را تاؤ زما ګردن کړي
بس چې یو نظر يې زلزله زما په تن کړي
هغه چې ما ورتې او وايي چې "را نه شې"
هغه چې قيمت مي ورته ښکاري دوه وربشې
خدايه یو بنده غواړم ژوندی او حق پرسته
ګوره که لذت ومومم داسي له شکسته

%%%

## د زحل فلك

# هغه رذیل روحونه چې د ملك او ملت سره یې غداري کړې وه او دوزخ قبول نه کړل

پیر د روم هم هغه چې امام دی د ربنتینو
هغه چې اشنا له هر مقام دی د ربنتینو
وې د آسمانونو لاروېه ډېر دي جوش دی
تا لیدلی دی هغه عالم چې زنارپوش دی
هغه چې ښکارېږي ګیر چاپېره یې له ملا دی
وړی دلګۍ نه د یو ستوري یې په غلا دی
دومره دروند چلیږي چې رفتار یې هم سکون دی
هر یو ښه د ده له حکمه بد دی او زبون دی
هر څو که جوړ شوی یې کالبوت له آب و ګل دی
کار د پښې په مځکه اېښودو ورته مشکل دی
یو لك فرښتې لري په لاس کښې تندرونه
وېشي د ازل نه د خدای قهر غضبونه
پر له پسې ستوري په دره وهي اکثره
ستوری په هوا کاندي اکثر له خپل محوره
واړه په هستۍ کښې دا عالم مردود رذیل دی
ورځ یې لکه شپه وي چې لمر پټ ساتي بخیل دی

ځای دی د ارواح پخوا د ورځي له شوره
دی د سوزېدلو نه دوزخ يې هم نفوره
دي دوه شيطانان پکښې عالم يې لړزولی
ځان دپاره روح د همه قام يې دی وژلی
دی جعفر صادق يو د بنګال بل د دکن دی
هر يو ننګ د دين، ننګ د آدم، ننګ د وطن دی
دواړه ناقبوله، نا اميده، نامراد
روغ ملت د دوی له برکته په فساد
دا ملت چي بند د هر ملت يې پرانستلو
ملك او هم يې دين د خپل مقام نه پرېوتلو
ولي نو ته نه پېژنې ملك د هندوستان؟
هغه چي مين دي پرې د زړونو خاوندان
دا هغه ټوټه ده چي روښانه پرې جهان دی
لا تر اوسه خاورو او په وينو کښې غلطان دی
خاوره کښې يې چا د غلامۍ تخم کرلی؟
بس دغو ناپاکو ارواحونو دی شيندلی
لږ خو نظر وکړه په دې شنه لويه فضا کښې
ګوره نتيجه د عمل څه وي په دنيا کښې

%%%

# دوينو درياب

څه چي ما ليدلي په بيان کښې نه ځايېږي
روح زما له ويري د خپل تن نه، نه خبرېږي
څه ګورم چي سيند دى يو له وينو ډک روان دى
هم پکښې دننه، هم دباندي پرې طوفان دى
پورته پرې ماران لکه په سيند کښې چي نهنګ ؤ
تور کچه وښنته يې د پارې غوندي په رن-ګ ؤ
تند او ماتوونکى يې هر موج لکه پلنګ ؤ
مړى له هيبته په ساحل باندي نهنګ ؤ
خپل ساحل يې لږ هم په آرام نه پرېښودلو
دم په دم په ګټ له غره په سيند کښې را لوېدلو
يو چپه د وينو به له بلې جنګېدله
منځ کښې يې کشتۍ وه ټټېدله، هسکېدله
دوه سړي سواره وو دې کشتۍ کښې زېړ ځېبښلي
خوار، سپېره، بربند، خيرن وښنته، څېرې ځپلي

%%%

# د هندوستان روح څرګندېږي

وچاودو آسمان ترې رابنکاره شوه یوه حوره
لري يې پرده کړه چې يې مخ ؤ ډك له نوره
پاس يې په تندي کښې تار او نور ؤ بې زواله
هم په دوه لېمو کښې يې سرور ؤ بې زواله
سپکه لوپټه يې له وريځ، ښکلې تارونه
بس خو د ګلاب د ګل د پاڼو وو رګونه
بيا سره د دې حسنه، نصيب کښې يې زنځير ؤ
خولې نه يې فرياد هسې ختلو چې دلګير ؤ
وې روميؒ دا روح د هندوستان دی و يې ګوره
سوزي پرې ځيګر چې د فرياد له ډېر زوره

## د هندوستان روح ژړا، فرياد کوي

شمع د زړه تته په فانوس د هندوستان کښې
خل-ګ يې له ناموسه بېګانه دي په هر آن کښې
واړه نا محرم دي د خپل نفس له رازونو
کم وهي زخمك د خپلو زړونو په تارونو
تل يې په تېر وخت پسې الوت کړي نظرونه
دوی له ساړه اوره تودوي خپل ځيګرونه
لاس او پښې تړلې چې زما دي، له هغو دي

چيغي چې دي غمي مې نارسا دي، له هغو دي
ګوره چې خودی نه يې خلاص کړي خپل ځانونه
دوی زړو رسمونو نه جوړ کړي زندانونه
تن-ګ يې سرېتوب دی له وجود او هم له ژواکه
هم دا نوی عصر يې له پاک او له ناپاکه
پرېږده هغه فقر چې حاصل يې عرياني وي
ځار له هغه فقره چې حاصل يې سلطاني وي
پرېږده خوی د صبر او ځان و ساته له جبره
جبر دی مجبور ته او جابر ته زيات له زهره
دا که ګورې روږدی شي په پرله پسې صبر
هغه ګوره روږدی شي، په پرله پسې جبر
بيا نو په دې دواړو کښې عادت د ستم ډېر شي
وردِ "ياليت قومي يعلمون" سې را برسېر شي
شپه د هندوستان به څنګه ورځ شي نه پوهېږم
مړ که وي جعفر روح يې ژوندی دی او وېرېږم
خلاص چې د هغه له يوه قيده نه بدن شي
بله چاله جوړه کړي مېشته په بل يو تن شي
کله د ګرجې سره لګيا وي ساز او باز کا
کله کړي سر ټيټ د هر مساليانو ته نياز کا

دين دی، که آئين دی، د هغه سوداګري ده
ګويا عنتري دی چې جامه يې حيدري ده
بس خو يو پوټی چې رنګ او بوی د جهان نور شي
رسم او آئين هم د هغه په هغه طور شي
مخکښې يې څه نور ؤ اوس څه بل د ده مسجود دی
نن زمونږ په وخت کښې خپل وطن د ده معبود دی
ګوره په ظاهر د دې په غم کښې خوار و زار دی
ننه د بامبڼ غوندي په غاړه يې زنار دی
وژني به ملت چې وي جعفر په هر بدن کښې
دا زور مسلمان ملت ګښي لري په تن کښې
خوله له خندا ډکه و هر چا ته خو يار نه دی
مار که خندنی شي څوك به وايي چې مار نه دی
وګوره نفاق يې، چې وحدت د قام دوه نيم دی
غم کښې خپل ملت مبتلا کړی دې لئيم دی
کار د بربادئ د کوم ملت چې چرته سر وي
مونډ به د هغې يا يو صادق يا يو جعفر وي
خدايه ته د روح نه د جعفر مو په نمان کړه
بيا د جعفرانو نه مو خلاص د دې زمان کړه

%%%

# د وینو د دریاب د کشتۍ دیو سپاره فریاد

"نه چرته عدم مو قبلوي او نه وجود
های د بې مهرۍ ځنې د بود او د نابود
هغه ؤ چي تېر شو د جهان له شرق و غربه
ورغلو دوزخ ته موږ سره د درد و کربه
نه يې يو بڅرۍ په صادق جعفر ګذار کړ
نه د خاورو موټۍ يې زما پر سر ګذار کړ
وې خوراك دوزخ لا ښه د خس او له خاشاکه
وې زما لمبه دي له دې دوو کافرو پاکه
لا رمه تر بره پاتې شول نهه آسمانه
لا رمه پخوا زه له مرګونې ناګهانه
وې چي "روح دی راز چي د اسرارو نه زما دی
روح ساتل او تن ورانول دغه کار زما دی
بد روح که هر څو په دوو وربښو هم ارزان دی
اې چي ورانول د تن مي غواړې درومه ګران دی
توان د مرګې نشته چي به هسي رنګه کار کا
روح چي د راحت سره آشنا د یو غدار کا
"تندې هوا! اې د وینو سرو سینده روانه

اې فراخې مځکې اې بې حده شين اسمانه!
اې روښانه ستوريو! اې سپوږمۍ او اې آفتابه!
اې قلمه! اې لوحه محفوظه، اې کتابه
اې سرمايه دارو د مغرب سپينو بتانو
اې بې جن-ګ جګړې د ملکونو مالکانو
دا همه جهان بې ابتدا، بې انتها دی
او واېي چې څوک د يو غدار بنده مولا دی؟"
ناڅاپه يو ږغ زړه لړزوونکی را پيدا شو
څيري پرې تېر چې د صحرا او د دريا شو
ربط ؤ، که نظام ؤ، د اقليم د بدن وران شو
ګويا ګټ له ګټه جنګېدو هسي طوفان شو
غرونه پکښې تلل جوړې وريځ وه الوتله
غږ د شپېلۍ نه ؤ، خو دنيا وه نړېدله
پړق د زړه له تاوه، دنياګانې ورانولې
سيند کښې يې د وينو ښکته جالې لټولې
شور کښې وې څپې له خپله واکه وې وتلې
غرونه غاړې هر خوا ته په وينو وې لړلې
هر هغه چې تېر په نا پيدا او په پيدا شول
ستورو به کتل ورته او تېر ترې بې پروا شول

%%%

# دآسمانونو نه بره د الماني حکيم نطشه مقام

هر چېرته جګړه د فنا او د بقا ده
هيڅوک برې پوی نه شو د فلک څه مدعا ده
هر چرته پيغام د ژوند مرګی راوړي ډېر ښه دی
سخ د هغه کس چي په دې پوی شي چي مرګ څه دی
هر چرته ارزان لکه هوا دغه حيات وي
دی خو بې ثبات خو په ارمان کښې د ثبات وي
سل عالمه ما چي په شپږ ورځي کښې پيدا دي
وليدل تر دغې کائيناته چي نما دي
بېلې هم پرې وني، هم سپوږمۍ د هر جهان دی
بيل يې وي آئين، بيل يې د ژوند ساز او سامان دی
وخت د هر عالم ګاهې روان لکه دريا وي
دلته وي ورو- ورو خو هلته تند لکه هوا وي
کله زموږ چرته کښې يو مياشت چرته يو دم دی
دې دنيا کښې ډېر چي څه ته وايو هلته کم دی
دې دنيا کښې عقل مو صاحب چي د فنون دی
دا دي که په بل جهان کښې وليد خوار زبون دی

بیا مي په سرحد د دې نیمګړي جهان ولید
یو سړی مي هلته خوږمن زړه او ګریان ولید
سترګو کښې سیوا له باتورانو یې تیزي وه
مخ یې پلوشې کړې ترې ښکاره د مخ ګرمي وه
سوز به یې د زړه په هر ساعت کښې زیاتېدلو
دا بیت یې په خوله ؤ چې سل ځل یې وویلو
"تښتي له جبریل، جنت، او حوري هم ځښتنه
غه کالبوت چې سوز یې وي له یو روح ارمانجنه"
ما رومي ته وویل چې څوك دا دیوانه دی
وویل رومي "دا د ایمان یو فرزانه دی"
ځای یې دی په منځ کښې د دې دواړو عالمونو
پټه یې نغمه ده، په شپېلۍ کښې له کالونو
بې دار و رسنه دا حلاج دی جوړ راغلی
هغه پخواني تکې یې بل ډول ویلې
تکي یې بیباکه دي افکار یې ډېر عظیم دي
واړه مغربیان یې د ګفتار په تیغ دوه نیم دي
یو ملګری هم یې له جذبې نه خبرېدلو
هغه مجذوب دوی ته لېونی به ښکارېدلو
عشق او د مستۍ نه عاقلان وي بې نصیبه

تل به يې تشخيص دپاره ورلو تر طبيبه
نور څه وي طبيب سره؟ خو بس فريب او رنګ وي
های شه په مجذوب چې زېړېدلی په فرنګ وي
څه ابن سينا کړي؟ خو تکيه په کتابونه
ورکړي خواب آورې ګولۍ يا وهي رګونه
وګوره حلاج ته پخپل ښار کښې ؤ غريب
پاتې چې ژوندی شو له ملا مړ کړو طبيب
نه ؤ لار ښودونکی څوک په خاوره د فرنګ کښې
تنده يې د حد نه شوه نغمه چې وه په جنګ کښې
چا دې لازوی ته مخکښې شمع نه کړه بله
خود په وارداتو کښې يې راغلل سل خلله
زنګ ترې چا ونه کړو که په اصل کښې سره زر وو
چا د کار سړی ترې نه جوړ نه کړو يې ګودر وو
ؤ هغه عاشق چې د خپل آه په زار کښې ورک ؤ
يو هغه سالک ؤ چې پخپله لار کښې ورک ؤ
ما ته يې مستني په هر مقام هره ښيبنه کړه
پرې يې هم له خدايه هم د ځان څنې رشته کړه
ده غوښته ليدنه چې په سترګو ظاهري شي
ګډه په يو ځای چې قاهري او دلبري شي

ده دغه غوښتل له خاورو ختو چي بېرون شي
دې د زره پټي کښې چي کوم ورۍ را زرغون شي
ده چي څه غوښتل هغه مقام د کبريا دی
دا مقام د عقل او حکمت نه ماورا دی
شرح دغه ژوند له اشاراتو د خودۍ دی
"لا" دی که "الا" له مقاماتو د خودۍ دی
پاتې له "الا" شولو په "لا" کښې درمانده شو
ځکه د مقام د "عبده" نه بېګانه شو
ۇ د تجلۍ سره تر خوا خو بې خبر ۇ
لري د مېوې غوندي له ستې د شجر ۇ
سترګو بې ديدن د بل چا نه غوښت بې آدمه
چيغې بې وهلې آدم کوم دی؟ اې عالمه!

## ق

وګڼي هغه خو د آدمو نه بې زار ۇ
هغه د موسیٰ غوندي طالب د بل ديدار ۇ
درېغه چي هغه په زمانه کښې د احمدرح* وې
دی به رسېدلی خوشحالۍ ته د سرمد وې

* احمد: حضرت شېخ احمد سرهنديرح

بس د هغه عقل د خپل ځان سره وییږي
ځه په خپله لاره، خپله لار ښه معلومیږي
پورته دي قدم کړه، مخکښې اوس هغه مقام دی
بې حرفه پکښې ظاهرېدونکی چي کلام دی

## د جنت الفردوس په لور لیږدېدنه

و وتمه، لاړمه له حد د کائیناته
ورغلمه زه چي یو جهان ؤ بې جهاته
ښی او چپ یې نشته دی بې لوره دا جهان دی
شپه او ورځ یې نشته، هسي طوره دا جهان دی
هلته چي څراغ مي د ادارك ؤ تت او خړ شو
حرف مي د هیبت نه د معنا پرېوتو مړ شو
حال د روح په دې ژبه ویل کله آسان وي
بند چي وي پنجره کښې الوتل ورته ډېر ګران وي
لږ غوندي خو ته وکړه نظر د زړه جهان ته
را چي شي رڼا د د خپل نور ځنې چشمان ته
څه دی زړه؟ دنیا ده بې د رن‌ګ او بې له بویه
پاکه دا دنیا د رن‌ګ او بوی ده، له چار سویه
زړه که څو ساکن دی خو په هر ساعت سیار دی

ډك دغه عالم ته له احوال او له افكار دی
ځي يو حقيقت نه بل ته ورو۔ ورو رسي عقل
زره ځي بې له لاري بې له سيره بې له نقل
سل که وي خيالونه خو هر يو له بل جدا وي
دا له آسمانونو آشنا هغه نارسا وي
هيڅوك داسي نه وايي چي دا ګردون آشنا
مل دی په مزل د هغه خيالِ نا رسا
يا د يار له ديد چي شي پيدا هغه سرور دی
يا د کوڅې باد دی چي دارو د زړه رنځور دی
خوب که وي راغلی لا دي تللې له لېمو وي
ديد د زړه په ځای بغير د لمر د پلوشو وي
بس هغه دنيا د زړه دنيا غوندي به وي
لمر د هغې څه او يام چي خيال کښې نه راځي
بيا هغې جهان کښې لا دننه بل جهان دی
اصل د هغې جهان له بېله "کن فکان" دی
هغه لازوال دی دم په دم نوی ښکارېږي
نه راځي په وهم کښې لېکن ليدلې کېږي
هر ساعت هغه لره پيدا نوی کمال دی
هر ساعت په هغه کښې ښکاره نوی جمال دی

هيڅ حاجت يې نشته لمر، سپوږمۍ ته له هيڅ شانه
ځای به شي انګړ کښې د هغه نهه آسمانه
هر هغه غائب چې وي نو هلته د ليدو وي
مخکښې له هغه چې يې پيدا په زړه آرزو وي
زه به درته څه پخپله ژبه وايم څه دی؟
بس دغه جهان ظهور او نور د ژوندانه دی
ښکلې ربدي ګلې يې خندا نه دی په غرونو
دي ښکلي نهرونه يې جاري په ګلزارونو
سپيني آسماني او سرې غونچې يې د ګلانو
دوی همه غوربړي په نفس د قدوسيانو
ياد يې عنبرين، اوبه په شان د سپينو زرو
شته پرې زمردي ماڼۍ قبې يې د مرمرو
سرې- سرې ياقوتي خيمې زرين يې طنابونه
رشک د آئينو يې معشوقې لري مخونه
وويل روميؒ چې "اې راګيره په قياس!
تېر شه ته له دې اعتباراتو د حواس
دا خو تجلي ده د دې ښو بدو کارونو
چرته د جنت رنګ اخلي چرته د اورونو
اوس چې دا ته وينې محلونه رنګ په رنګ دي

اصل يې اعمال دي، نه چې دوی له خشت و سنګ دي
دا چې خل-ک وايي چې کوثر، غلمان او حور وي
دا له دې جهان جلوه د جذب او د سرور وي
دلته چې کوم ژوند دی، نو بس هغه له ديدار دی
ذوق دی د ديدار او ننداري او د ګفتار دی"

%%%

# د شرف النسآء محل

ما وې دا محل سوا د لعل له آب و تابه
هغه چې برېښنا يې خراج اخلي له آفتابه
دغه لوړ محل، دغه ماڼۍ، دا څه مقام دی
حورو چې تړلی يې په در باندي احرام دی
اې چې سالکان دي کړل آشنا له جستجو يه
څوک د دې ځښتن دی را ووايه نېک خويه
وې چې "دا محل مو د بېګم شرف النسآء دی
بس د بام مارغۀ يې د ملکو هم نوا دی
داسي مرغلره زموږ سيند نه ده راوړلې
نه دا هسي لور له بلې موره زېږېدلې

خاوره د لاهور يې جوړ آسمان شوه له مزاره
نشته په جهان يې څوك له رازه خبرداره
هغه سر تر پايه ذوق او شوق او درد او داغ ده
واوره د پنجاب د يو حاكم چشم و څراغ ده
هغه چې و آل عبدالصمد لره رڼا ده
پاتې يې د فقر چې نقشه تر ابدا ده
سوز يې ؤ په زړه كښې د قرآن له بركته
نه اوزګارېدله يو نفس له تلاوته
توره يې تر ملا وه او قرآن به يې ؤ لاس كښې
عشق يې ؤ د خداى په تن بدن او په حواس كښې
لمونځ به ؤ او توره هم خلوت ؤ هم قرآن ؤ
څنګه ښكلې عمر ؤ چې تېر په دغه شان ؤ
ساه په زنكدن كښې چې يې راغله تر مرئ
او يې كتل مور ته څه په ډېره مشتاقئ
وې ويل كه څه هم زما راز په تا عيان وي
ستا به تل نظر، زما په توره په قرآن وي
دا دوه قوتونه محافظ د يو او بل دي
دا د ژوند جهان ته محورونه تل تر تل دي
دا يې په دنيا كښې هر نفس محافظان وو

ستا د لور هم دغه حقيقي دوه محرمان وو
وخت کښې د رخصت مې وصيت دی چې که ښه کړې
دا توره قرآن چې تهٔ زما نه جدا نه کړې
وکړه پرې عمل چې وايم زه بې قال و قيله
قبر زما جوړ کړی بې ګنبده بې قنديله
تيغ مسلمانانو ته سره د قرآن بس دی
قبر ته زما مورې هم دغه سامان بس دی
پروت ډېره موده د دې په قبر بر قرار وُ
وه يوه يې توره، بل قرآن يې په مزار وُ
قبر د هغې د اهل حق دپاره عام وُ
ژوند لره په دې فاني دنيا کښې يو پيغام وُ
خپل عمل مسلم له اقتداره پرې ويستلو
فرش د حکومت يې زمانې را ونغښتلو
مرد چې وُ د حق د غيرِ حق نه په لړزا شو
شېر چې د مولا وُ د لومبړی نه سوا شو
لا يې رو د زړه نه تب او تاب چې د سيماب وُ
ته خو ښه پوهېږې بيا څه حال چې د پنجاب وُ
لاس کښې د سکهانو هم دا توره هم قرآن شو
مړه مسلماني په دې وطن هم مسلمان شو

# د امیر کبیر حضرت سید علي همداني رح او ملا طاهر غني کشمیري رح زیارت

اور مي زړګي واخیست د رومي رح په دې خبره
را مي غله په خوله چې های پنجابه بختوره
بل کړل د یارانو غم په ما باندې اورونه
شول مي په جنت کښې په زړګي زاړه غمونه
دې وخت کښې ما واورېده صدا یوه دردمنده
شوله د کوثر د حوض له خوا ځنې بلنده
"یو موټی خشاک مي غونډ کړو ځان مي پرې سېزلو
ګل وې ګڼي جاله جوړوي په ګلستان کښې"

(غني)

وې رومي رح چې څوک راشي نو ګوره ورته بویه
څه چې وي تېر شوي هغه هېر کړه زما ځویه
یو رنګین نوا شاعر ملا طاهر غني ؤ
فقر د هغه باطن غني ظاهر غني ؤ
ښه نغمه جاري د ده په شونډو بهٔ مدام وه
دا بهٔ په حضور کښې د سید والا مقام وه

مشر د ساداتو، هم سالار چي د عجم ؤ
لاس يې يو معمار د تقديرونو د امم ؤ
درس د الله هو او ذكر فكر د مردانو
واخيست غزالي‌رح هم د هغه له مشرانو
هغه چي د دغه بې نظيره وطن پير ؤ
هغه چي امير، فقير، بادشاه لره مشير ؤ
ګويا ؤ د فيض يې په لستوني کښې سيندونه
ور يې کړۀ دې ملك ته تهذيبونه هم علمونه
ده په نوو۔ نوو زرړه راښکونکي هنرونو
جوړ دلته وړوکی شان ايران کړو په فکرونو
غوټي به يې وا په يو نظر کړې سل له واره
زر شه پربېږده، غشي د هغه ته د زړه لاره

# د شاه همدان په حضور کښې

## زنده رود

غوارم يې کنجي د تا نه راز چي د يزدان دی
ما نه طاعت غواړي، هم جوړ کړی يې شيطان دی
يو طرف خو ما وته بدی ښکلې ښکاره کړې

بل خوا په عمل کښې د نېکۍ مطالبه کړې
ووايه چې دا فسون سازي ده او که څه ده؟
يا د جوار ګرو څه بازي ده او که څه ده؟
دا يو موټی خاورې او بې حده آسمانونه
وايه مناسب ؤ چې يې وکړه دا کارونه؟
کار دی که افکار زموږ خو موږ لره آزار دی
چك وهو په خپلو لاسو دا زموږه کار دی

## شاه همدان

هغه بنده کوم؟ چې د خپل ځان ځنې خبر وي
هغه جوړولی شي ترې نفع که ضرر وي
ناسته د شیطان سره وه آدم لره وبال دی
رخه د شیطان سره آدم لره جمال دی
ځان په دې شیطان کړه ور ګذار د لاروي کړه
ته يې همه توره جوړ د هغه نه برچې کړه
تېز شه چې ګذار د سخت شي ورکړه ورله ماتې
وګڼې بدبخت به شې په دوه جهانه پاتې

## زنده رود

لاندي تر آسمانه يو سړی د بل خوراك دی
يو ملت په بل ملت يرغل کوي بې باك دی
زړه د وطنيانو سيزي ګويا سپېلنی دی
زړه نه يې خوږمنی چيغې خيژي لېونی دی
څومره خوږ ملت دی، څه زيرك؟ ډك له کمال دی
دا پخپل هنر په ټول جهان کښې يو مثال دی
غرقه يې پياله د خپلو وينو په غولۍ کښې
دی دغه مضمون چي مي ژړا ده په شپېلۍ کښې
دی چي د خودۍ ځنې پرېوتی بې نصيب دی
ځکه خو هغه پخپل وطن کښې هم غريب دی
وکړي مزدوري خو په قبضه کښې وي د نورو
کب يې د خپل سيند وي په کنډه کښې وي د نورو
لېږدي کاروانونه يې منزل ته ګام تر ګامه
کار يې وي بې خونده خام کچه او بې اندامه
مړې يې شوې جذبې په غلامۍ کښې اوس سړي دي
وې چي يې لمبې د تاك په رګ کښې هغه مړي دي
دا په زړه کښې مه وايه چي دی هم دغه شی ؤ
تل پردو درشلو باندي پروت د ده تندی ؤ
دی په يوه وخت کښې صف شکن او توره باز ؤ

لويه حوصله يې وه، غالب ؤ هم جانباز ؤ
وګوره دا ښکلې سپين غټن غوندي يې غرونه
ګوره دا د اور لاسونه ښکاري چنارونه
وني په سپرلي کښې يې لعلونه له هر سنګ وي
پورته يې له خاورو يو طوفان غوندي د رن-ګ وي
څه ټوک- ټوک وريځې يې د غرونو په دامان وې
يا پنبه الوتې د ليندې نه د کمان وې
غرونه دريابونه او د لمر په پرېوتو کښې
خداى مي بې حجابه وليدلو دې ورشو کښې
هلته په نشاط* کښې مي نسيم سره پرواز ؤ
"بشنواز نې✉" ؤ زما په لبو دا مي ساز ؤ
دا رنګې لګيا ؤ يو مارغوکې په شاخسار کښې
وې کا سيره نشته دې بها په دې بهار کښې
راغى ريدي ګلي تور نرګس هم را عيان شو
څيري د نوروز د باد له لاسه يې ګرېوان شو
ډېر عمر زرغون شو له دې غر او له کمره
نور نه د سپوږمۍ نسترن پاکيزه تره

---

* نشاط: د کشمير مشهور باغ.

✉ بشنوازني: تلميح د حضرت رومي په شعر: بشنو از نی چون حکايت مي کند.

دېر عمر ګلونه راغله لاړه نما نه شو
بل شهاب الدين* زموږ له خاورې پيدا نه شو
دا سوې ژړا چې د سحر هغه مارغه کړه
بل شاني ګرمي يې را پيدا زما په زړه کړه
آن چې مي يو وليد لېونی چې په خروش ؤ
يو يې ووړ زما نه چې سامان زما د هوش ؤ
"مه غواړه زما نه مستانه ژړا تېرېږده
ښاخ د ګل جادو د رنګ او بوی دی ترې لېږديږه
تا وې چې له پاڼو د رېدي څاڅي شبنم
دې غافل په غاړه چپه د رود ځځوي نم
يو موټی بڼې او دا سرود او واويلا
دا د غني روح ژاړي په مرګ د تمنا
ته که جنيوا ته چيري ځې بادِ صبا
ورسوه "مجلسِ اقوام ته دا له ما
خرڅې يې ولې پټي باغونه هم دهقان کړ
هم يې قام کړ خرڅ همه، خو خرڅ يې څه ارزان کړ

%%%

---

* شهاب الدين: د کشمير يو باچا.

# شاه همدان

زه يو باريك رزم درته وايمه پسره!
تن دي همه خاوره، ولې روح دي مرغلره
جسم چې د روح دپاره ويلې شي پكار دى
پاك څيز چې له خاورو بېلولى شي هوښيار دى
ته يوه ټوټه د تن كه غوڅه كړې له تنه
بيا به لاس ته در نه شي جدا شوه له بدنه
او كه چرته روح په جلوه مست وي را پيدا شي
ته كه يې قربان كړې نو واپس به درته را شي
نه دى د هيڅ څيز غوندي، جوهر چې د هغه دى
دې هغه بندي ولې بيا هم په بند كښې نه دى
مړ شي چې يې ته كوې پالنه په بدن كښې
او كه يې قربان كړې شي رڼا په انجمن كښې
روح جلوه مست وايې څه ته؟ مرده د لاوره
خپل روح وركول څه وي او نمايه بهادره!
روح وركول څه دي؟ مخ يې حق ته ګرزول دي
بيا د روح په تاؤ باندي د غر ويلې كول دي
څه جلوه مستي ده؟ خو د خپل ځان پېژندنه

تورو تورو شپو کښې لکه ستورې ځلېدنه
نه موندل د ځان په حقيقت کښې ورکېدل دي
ځان موندنه، خپل ځان ته، د خپل ځان ور بخښل دي
ځان چي وليد چا بل بې و نه ليد بې له ځانه
خپل ځان بې بهر کړلو د خپل ځان له زندانه
ځان چي کوم يو مست د دې جلوې وپېژندلو
درد ورته له ډېروي خوشو ښه وښکارېدلو
ځان د دې نظر کښې لکه باد هسې ارزان شي
بيا نو په لرزان د ده په مخکښې خپل زندان شي
دې په تبشه خپله د کلك کاڼي زړه چوي
داسې د دنيا نه خپل قسمت پورته کوي
تېر چي له خپل ځانه شي نو ځان هله د ده دی
دا که نه وي روح بې د يو څو لحظو مېلمه دی

## زنده رود

تا د ښو او بدو له حکمته کړم خبر
اې هوښياره مشره! يو نکته يو بل نظر
ته په معنا پوی وې په معنا د پويو سر وې
ته د بادشاهانو د رازونو نه خبر وې
موږه فقيران يو بادشاهان غواړي خراج

# څه دی اصليت د اعتبار د تخت و تاج

## شاه همدان

اصل د شاهي څه دی په شرق کښې او په غرب؟
يا رضا د خلګو او يا جن‌ګ و حرب و ضرب
زه درته رښتيا ووايم اې عالي مقام!
بې له دوو کسانو خراج نورو ته حرام
يا يو "اولی الامر" چې منکم* د هغه شان دی
دا د خدای آيت د ده ثبوت دی او برهان دی
يا هغه ځلمی چې د سيلۍ غوندي را خور شي
هر خوا ته ملکونه را نيوای په جن‌ګ و زور شي
وي په ورځ د جن‌ګ يې تماشې د قاهری
وي په ورځ د صلحې يې ښيوې د دلبری
هند و ايران دواړه په پيسو شي خرڅېدلی
هيڅوک بادشاهي په بيه نه شي اخستلی
هيڅوک د دوکان د ښيښنه ګرو نه په دام
نه شي اخستلی اې ځوانانو د جم جام
جام د جم چې خرڅ شي په پيسو تشه ښيښنه شي

---

* اولی الامر منکم: په آيت کريمه اشاره ده.

تشه ښیښنه څه؟ د ماتېدو يې اندېښنه شي

%%%

# غني

هند ته دا مزه د آزادۍ ورکړله چا؟
صید ته دا سودا د صیادۍ ورکړله چا؟
دا هغه اولاد د برهمن دی زنده دل
سور ریدي د دوی د سرو مخونو نه خجل
تېز نظر او سخت او جفاکش او پخته کار دي
واړه فیرنګیان يې د نظر نه په کوکار دي
اصل د دوی هم زموږ د خاورې له خمیر دی
دې روښانه ستوريو له افق زموږ کشمیر دی
ته که له سپرغو ګڼې خالي زموږ ایره
لږ خو د نظر په ډکي ځان را اوکیره
ته چې دومره سوز لرې دا وایه دې له کومه
ساه دي دسپرلي نسیم، اونمایه دې له کومه؟
دا هغه نسیم دی چې د دې له تاثیرونو
خوند و رن-ګ و بوی اخستی دی زموږه غرونو
ښه نو خبر نه يې چې د لري سیند په غاړه

وې يوې ځپې بلې ځپې ته هسکه غاړه
ځو به په درياب کښې يو د بل سره جنګېږو
پاڅه په يو دم کښې چې ساحل ته ورسېږو
هغه پخوانی زموږه سيند د خپل وطن دی
شور يې په ګڅيو کښې د غرونو په لمن دی
سر وهي د لار په ګټو کاندي چپاوونه
ان تر دې چې اوکني د غرونو بنيادونه
هغه ځوان چې ښار او د صحرا د رانيوو دی
شوی پرورش يې د سل مياندو په شود دی
دا همه له موږ دی د هغه چې کوم شوکت دی
دا سطوت شوکت يې وارو خلګو ته قيامت دی
ژوند مو د ساحل نه را دننه څه پکار دی
دا ساحل که ګورې ګټه، خټ زموږ د لار دی
روغه د ساحل سره کول مرګ د دوام دی
خير که په درياب کښې مو چپاؤ سحر ماښام دی
ژوند دی دا چې زغل په غرو روغو يې وکړو لاړو
ځار له هغه موجه چې ورکيوزي په غاړو
اې هغه د ژوند د تندي خط چې تا لوستلی
اې د ژوندون اور د چې مشرق ته ور بخښلی

اې چې داسي آه لرې چې سیزي ځیګرونه
ته یې ترې بېتاب خو موړ له تا ترې سوا یونه
ته یې چې بلبل درنه ژړا په هر نفس کړي
ستا په پاکو اوښکو د چمن شینکی اودس کړي
اې چې ستا د طبعې نه پټې د عشق زرغون شو
اې چې هر یو زړه دي له امیده ډک ممنون شو
غږ چې ستا جرس دی، د همه ؤ کاروانونو
ولې نا امید یې د وطن له اولسونو
زړه یې لا ژوندی دی په سینو کښې نه چې مړ دی
روڼ د خوړلن لاندي یې بخری نه چې خړ دی
وار خو وکړه ته، بې د شپېلۍ له آوازونو
یو ملت د خاورو نه به جګ شي د قبرونو
غم در کښې څرګند ولې خاونده د نظر شي
وکړه داسي آه چې سره لمبه دا خشک و تر شي
ډېر د لاجوردي آسمان نه لاندي شته ښارونه
لاړل سره لمبه شوو چې درویش وکړل آهونه
واوره حکومت د بړبوکۍ نه هم نازک دی
بس خو یو پوکی چې ورته ور کاندي نو ورک وي
جوړ د شاعرۍ نه شي تقدیر د امتونو

هم کوي تخریب او هم تعمیر د امتونو
ځو که ستا نشتر دی هر یو زړه ته رسېدلی
بیا هم حقیقت کښې ته چا نه یې پېژندلی
ده په تا پرده چې د نوا د شاعرۍ نه
ستا ښکلې وینا ده ما ورا د شاعرۍ نه
جوړ څه نوی۔ نوی شور و شر کړه په جنت کښې
راشه مستانه سندره سر کړه په جنت کښې

%%%

## زنده رود

آشنا د درویشۍ نشه کړه څښنه بیا دم په دم
چې پوخ شې پکښې لاندي کړه تر پښو شاهې د جم
وې خوښ دي تا زموږه دا جهان دی او که نه؟
ما وېل چې نه، ویل یې هله زر یې کړه برهم
ما چرته میکدو کښې ښایسته رقیب ونه لید
رستم سره جامونه څښنه د وړکیو سره کم
صحرا کښې ریدي ګله! سوزېدای نه شې ځان۔ ځان ته
دا روڼ د ځیګر داغ وهه په زړونو د آدم
پټ سوز یې د زړه ته، هم یې په وینه کښې ګرمي یې

باور که نه کړې څيري خو کالبوت کړه د عالم
دا عقل ستا څراغ دی، بس په لاره کښې يې کښېږده
پياله دي عشق ده، څښه يې له هغه، چې وي محرم
د زړه ټوټې مې سرې په وينو ونوستې له سترګو
دا لعل د بدخشان مې واخله، جوړ کړه ترې خاتم

## د هندي شاعر "برتري هري" سره صحبت

حورو ته مې تللې تر محل او تر خېمو ده
دا "ژړا بلنه" د کاملو سوزېدو ده
هغې يوې ما ته د خېمې نه سر بهر کړ
هغې بلې بنکته له کړکۍ راته نظر کړ
ما په جاودان جنت کښې جوړ هسې ماتم کړ
ډک چې هر يو زړه مې د فاني دنيا له غم کړ
مسکۍ د شونډو لاندې هغه پير سو چې فطرت شو
وې چې "اې هندي ساحره دا دي څه حالت شو"؟
هغه مخامخ ګوره هندي صاحب قلم دی
فيض نه د نظر يې مرغلره هم شبنم دی
دا نکته شناس دی چې نامه يې برتري ده
داسې يې فطرت لکه وريځ چې اذري ده

ده به له چمن نوې غوټۍ راشو کوله
ستا نغمو ېې موږ ته توجه وګرځوله
وګوره بادشاه هم په سخن کښې ارجمند دی
هم د ده مقام په فقیرۍ کښې ډېر بلند دی
دی د رسا فکر نه کړي جوړ ښکلي نقشونه
جوړ ېې لوی جهان کړي د معنا یو دوه حرفونه
څومره کارخانه چې ده د ژوند دا ېې محرم دی
دی پخپله جم دی، شاعري ېې جام د جم دی"
موږه ېې تعظیم لره اوچت هغه ساعت شو
ورغلو هغه سره بیا موږه په صحبت شو

## زنده رود

اې چې ېې بها نکتې دي ووې له اسراره
اې چې شو مشرق په راز خبر ستا له ګفتاره
سوز د چا په شعر کښې رائحي له کومه ځایه
ووایه هغه وي د خودۍ نه که له خدایه؟

## برتري هري

هر څوك خبر نه وي شاعر چرته په دنيا وي
پټ په زير او بم کښې په پرده کښې د نوا وي
هغه ګرم زړه چې يې دننه په کنار وي
خدای ته هم ولاړ که مخامخ وي بې قرار وي
روح لره زموږه وي لذت په جستجو کښې
پروت د شعر سوز وي په مقام د آرزو کښې
اې چې د سخن له تاکه وي مستي مدام ستا
ته به بختور يې که نصيب شي دا مقام ستا
ستا د کاڼو خښتو د ملك دوه بيته خواږه
وراى شي د جنت د مستانه حورو نه زړه

## زنده رود

وليدل هنديان مې چې وي ډك له پېچ او تابه
وخت راغلی اوس چې، سر د حق کړې بې حجابه

## برتري هري

دا کچه خدايان د خاورو ګټو وي عالمه
شته دی يو برتر، لري له دير او له حرمه
ذوق چې د عمل يې نه وي خشکه په سجده وي

ده زندګاني د کردار نوم، بده که ښه وي
یو ټکی مي واوره چې ډېر کم ترې خبردار دي
ځوك يې چې د زړه په تخته ولیکي هوښیار دی
دا جهان چې وينې ظاهر نه دی له یزدانه
دا څرخه له تا ده هم تارونه يې د تا نه
وګړه مکافات ته د عمل سجده پخپله
ځکه چې دوزخ اعراف جنت دی له عمله

(دبرترۍ هرۍ ژباړه)

# د مشرق د سلطانانو محل ته روانېدل نادرابدالي سلطان شهید

شوه په روح خوره مي چې صدا د برترۍ وه
زه پرې وم مست شوی چې نوا د برترۍ وه
وې رومي "لېمه د زړۀ هغه ښه چې بیدار وي
پټې وي بهر ښې چې د حلقې نه د افکار وي
راغلې ته، او تېر شوې په مجلس د درویشانو
راشه محل هم وګوره لږ د بادشاهانو
شته دې انجمن کښې د مشرق چې بادشهان دي

ګویا سطوتو نه د ایران د کن افغان دی
یو هغه نادر چي پوی په رمز د اتحاد ؤ
ده ځخه مسلم لره پیغام د ښه و داد ؤ
بل یو ابدالي دی چي وجود د ده آیت ؤ
ور يې کړو افغان لره، اساس چي د ملت ؤ
هغه د الفت د شهیدانو چي امام دی
هغه چي عزت د هند او چین او روم او شام دی
نوم يې چي د لمر او د سپوږمۍ نه دی روښانه
ده د قبر خاوره يې ژوندی زما او ستا نه
راز د عشق چي پټ ؤ ده په ډاګه را بهر کړو
ته ترې خبر نه يې څه په شوق يې چي سرور کړو
غه په برکت چي سر د بدر او د حنین ؤ
دی وارث په فقر او جذبه کښې د حسین ؤ
لاړو ترې سلطان له دې فاني سرایه رحلت دی
پاتې لا تر اوسه په دکن کښې يې نوبت دی"
فکر مي ناقص دی حرف او بږغ هم زما خام دی
نه شمه ښودلې چي څه شان هغه مقام دی
ټول نوري مخلوق يې د جلوو ځنې بصیر ؤ
هم ژوندی دانا ؤ هم ګویا او هم خبیر ؤ

داسي يو محل د فيروزې يې ديوالونه
ځای به ۇ آسمان پکښې لرل يې رفعتون
هيڅ په اندازه کښې نه راتلو، هسي رفعت ۇ
فکر هم د داسي اندازې نه په هيبت ۇ
سروي او ګلاب او چمبېلي ښکلي ښاخونه
جوړ په لطافت کښې د سپرلي وو تصويرونه
پاڼي يې د ګلو او د ونو کړي زلقونه
شوق د شېرازۍ کښې بدلوي نوي رنګونه
وګوره نسيم ته هم چي څومره جادوګر دی
بس خو چي ته سترګې رپوې نو زېړ احمر دی
ښکلې فوارې يې هر طرف ګوهر فروشه
ښته دی فردوسي مرغان پکښې ډک له خروشه
جوړ ښکلی دربار دی يو په دې محل بلند کښې
داسي يې ذره ده چي يې لمر وي په کمند کښې
ستني دي، که چت، که دېوالونه، د عقيق دي
فرش يې دی له پشمه ګرد، برېدونه د عقيق دي
جوړ د دې دربار په ښي او چپ ښکلي صفونه
حورو دي ترلي څه زرين کمر بندونه
تخت ۇ د سرو زرو پکښې ناست پرې بادشاهان وو

ټول په دبدبه کښې د بهرام او جم په شان وو
بیا هغه روميرح چي آئینه د ښه ادب ؤ
ډېر په دلبرئ سره يې دا ټکی په لب ؤ
وې: "بادشاهانو ته، شاعر د مشرق دا دی
وا يي که شاعر او که ساحر د مشرق دا دی
فکر يې باریك دی او په زړه کښې يې دردونه
بل په مشرقیانو د ده شعر کړه اورونه

## نادر

ستړې مشې اې چي نکته سنج يې خاوري يې
تا سره پارسي ښايي چي پوهه په دري يې
اې زموږ د راز محرمه، راز راته عیان کړه
حال که در معلوم وي را څرګند يې د ایران کړه

## زنده رود

پس له ډېره عمره يې خپل ځان وپېژندلو
بیا د یوې لومي په حلقه کښې ونښتلو
مړ په تیغ د ناز شو د بتانو شوخو شنګو
پلار ؤ د تهذیب خو مقلد شو د فرنګو

واره سروکار يې اوس له ملك او له نسب شو
ستايي به شاپور په سپکاوي کښې د عرب شو
ژوند يې سراسر د وارداتو نه خالي دی
غواړي له زړو قبرونو ژوند داسي سوالي دی
خوښ يې کړو وطن او د خودئ نه لاس په سر شو
عشق يې د رستم کړلو اختيار، هېر يې حيدر شو
اخلي د فرنګه ځنې نقش چي باطل دی
خپل تهذيب يې پرېښودو فرنګ وته مائل دی
شوه چي زمانه د يزد جرد نو ايران زوړ ؤ
سره يې د مخ تللي ؤ د مړي غوندي سوړ ؤ
دين ؤ که آئين، هم يې زوړ شوی ټول نظام ؤ
هم يې ؤ زوړ شوی که سحر که يې ماښام ؤ
نه څرګندېدلو موج د ميوې له تاکه
نه يوه سپرغۍ يې را وته چرته له خاکه
ان چي خدای ورپېښ له صحرا ورته محشر کړو
داسي يو محشر ؤ چي يو نوی ژوند يې ورکړو
داسي يو محشر د عناياتو له مولا دی
شو ايران ژوندی او فنا رومةالکبرىٰ دی
هغه چي ارواح يې له کالبوته شوه رخصته

بیا وتی له خاورو شي مخکښې له قیامته
حیف دی د عربو د احسان په منکرانو
ویلي شول په اور کښې همګي د فیرنګیانو*

%%%

* دا دوه بیتونه نه دي ژباړل شوي دي:
مرد صحرا بایدان جان دمید :: باز سوی ریگ زار خود دمید
کنهه احسان عرب نشاختند :: از آتش افرنگیان بگداختند

# د ناصر خسرو روح ځرګندېږي يو مستانه سندره وايي بيا غايب شي

## غزل

لاس كښې چې دي توره قلم واخستو غم مكړه
ګډ وي كه بربنډ وي كه بېكاره دي وي تن

زېږي د قلم توري له ځوكو هنرونه
څنګه چې رڼا له اوره اور له نارون

بې ايمانه تېغ و قلم دواړه بې هنره
څه قيمت، بې دينه، د لرګي او د آهن

دين په عقلمندو ګران دی سپك دی په بې عقلو
داسي لكه غواته نسترن او ياسمن

يا لكه پنبه چې نيمه شي قميص الياسυ ته
نيمه بدقسمته يهودي لره كفن

# ابدالي او زنده رود

## ابدالي

هغه ځوان ملت چي يې کړه جوړ سلطنتونه
پس شو، بيا مېشته شو په خپل غرونه ميدانونه
اور يې چي بل شوی رو په غره له ډېره زوره
وسوزېد که ووتو سوچه له دغه اوره؟

## زنده رود

هر ملت د بل کوي وروري ولاړ په ننګ دی
بس خو يو پښتون دی چي د ورور سره په جنګ دی
ژوند دی د مشرق، د ده په ژوند کښې بختور دی
طفل لس کليز د دې ملت ځان ته لښکر دی
حيف چي دی له خپله استعداده بې خبر دی
ځان ته که يې پام شولو بې شانه هنرور دی
دې د زړه ځښتن دی خو غافل دی د زړه خپل نه
بيل دی تن په تن او زړه په زړه د يو او بل نه
دا لاروی نه پېژني لاره، خو روان دی
خپل مقصد ترې پټ دی خپل منزل ترې نه پنهان دی

څه ښه فرمائي هغه شاعر افغان شناسه
هغه چي څه ويني کړي ظاهر بې بې وسواسه
هغه چي حکيم ؤ د ملت د افغانانو
هغه چي طبيب ؤ د علت د افغانانو
راز به د يو قام ؤ ورمعلوم ده به ويلو
تکی چي د حق ؤ په شوخئ به يې ښودلو
"چرته چي اولجه کاندي يو اوښ آزاد افغان
ساز او د سامان سره پرې بار در و مرجان
ګوره خو په ځای د درګوهرو څه هوس کا؟
اوښ بار کړی پرېږدي کوز له غاړي يې جرس کا"

# ابدالي

خټه کښې زموږه تب او تاب چې دی له زړه دی
خاورو کښې چې ګوري بيداري او خواب له زړه دی
تن د زړه له مرګه په بل شان شي كه يې وينې
شي په مساماتو كښې خوله يې وينې وينې
زړه چې شي فاسد نو راته وايه بدن څه دی؟
بې د زړه نه بل خواهش چې ونه کړې زړه ښه دی
ملك د ايشيا كه يو قالب د آب و ګل دی
دا د پښتنو ملت په دې قالب كښې دل دی
دې كښې كه فساد راشي فساد يې د ايشيا دی
دی كه وي فراخه نو كشاد يې د ايشيا دی
زړه چې آزاد تر كومه تن به هم آزاد وي
وګڼي دا تن به خس په مخه كښې د باد وي
زړه لكه د تن غوندي پابند د يو آئين دی
زړه له كينې مړ شي خو ژوندون د دهٔ په دين دی
زور كه دی په دين كښې له مقامه د وحدت دی
چرته چې وحدت شي را څرګند هغه ملت دی
ځان به ورك له شرقه شي چې چارې د تقليد كا

ښايي د اقامو نه چي مغرب باندي تنقيد کا
نه دی د مغرب قوت د چنګ او له ربابه
نه له جينکو نه چي ګډېږي بې حجابه
او نه د جادو د لاله مخو ساحرانو
او نه له بربنډ پنډو او غوڅو وېښتانو
نه يې محکم والی په سبب د لادينۍ دی
نه د ترقۍ سبب يې خط د لاطينۍ دی
زور چي د فرنګ دی دا له علمه او له فن دی
بس هم دغه اور دی چي څراغ يې پرې روښن دی
وجه د حکمت خو نه د خاص قسم جامه ده
چا وې چي مانع د هنر علم، عمامه ده
واورئ علم او فن دپاره اې مستو ځوانانو
مغز دی په کار نه چي لباس د فيرنګيانو
ت‌ګ پر دغه لاره يې نګاه نه، واوره نه شي
وي که دا ټوپۍ او يا هغه ټوپۍ نو څه شي؟
بس درلره دا دی د تا فکر که چالاک وي
دا درله کافي دی طبعيت دي چي دراک وي
ډيري شپې خوراک د چا لوګی چي د څراغ شي
پسته بنه معلوم د علم و فن ورته سراغ شي

هيچاحد د علم او د حکمت نه دی موندلی
بې له ستر جهاده لاس ته نه دی ورغلی
مست چې فرنګې کړو ترك له ځانه لاړو ورك شو
زهر ي پرې وڅښل په شربت کې بې درك شو
ځکه چې ترياق يې د عراق لاړل له لاسه
بس خو څه بۀ وايمه شې مل يې رب الناسه
ذوق د دې غلام د فيرنګې د نمود دا دی
وړی يې ميدان له مغربيانو په ګډا دی
څه پاكيزه روح يې کړو برباد په لوبو وشتو
ګران ؤ علم زړه يې کړلو ښاد له لوبو وشتو
دومره آسان خوښی شو چې هيڅ کړه آسان ته
هم د ده فطرت ور مخکښې لپه کړه آسان ته
څوك چې اساني غواړي په دې زاړه جهان کښې
پوهه شه بدن به يې روح نه لري په ځان کښې

## زنده رود

پوهه يې په دې ؟ څنګه تهذيب دی د فرنګ
دوه سوه فردوسه شته، نړی کښې يې د رنګ
دغو فردوسونو يې سبزلې ډېر کورونه

هم يې ځالي، پاڼي دي سېزلي هم ښاخونه
وګوره ظاهر يې زړه راښکونکی تا بنده دی
زړه لري کمزوری او نظر لره بنده دی
سترګي يې کاته کړي، زړه لړزانه اندرون دی
دغې بتخانې وته پرېوتی سرنګون دی
هر څوک نه پوهېږي د مشرق چي څه تقدير دی
څه د دې ظاهر پوري تړلي زړه تدبير دی

## ابدالي

هغه په تقدير چي د مشرق پوره قادر دی
يو صاحب د عزم پهلوی دی بل نادر دی
هغه پهلوی وارث د تخت چي د قباد دی
غوټه د ايران يې چي پرانستې، نېک نهاد دی
هغه شاه نادر چي دی سردار د درانيانو
هغه چي نظام دی، د ملت د افغانانو
هغه چي د دين او وطن غم کښې خوار و زار ؤ
ده چي را ويستلی لوی لښکر له کوهسار ؤ
هغه چي سپاهي، سپه سالار او امير هم دی
اوسپنه دښمن لره، يارانو ته رېښم دی

ځار شم د هغه نه، چې خپل ځان یې پېژندلی
هم دا نوی عصر یې ډېر ښهٔ دی سنجولی
یاده مغربیانو ته څه ډېره ساحري ده
بل باندي تکینه بغیر له ځانه کافري ده

# سلطان شهید او زنده رود

## سلطان شهید

اوس نو راته وایه څه له هند او هندوستانه
هغه چې واښه یې هم بها دي له بوستانه
هغه چې مړه شوې د مسجد یې هنګامه ده
هغه چې لمبه په بتخانو کښې یې سړه ده
هغه چې په ده مې د زړه وینې دي خوړلې
مینه یې چې ما د زړه په غوښو ده روزلې
غم بهٔ د هغه، زما د غم نه اندازه شي
حیف د خپل عاشق نه چې غافله معشوقه شي

## زنده رود

وارہ د قانون نه يې منکر دي چې هنديان دي
سحر د فرنګ پرې اثر نه کړي هسې شان دي
وي آئين د غيرو چې منل يې ورته ګران وي
څو هغه آئين که نازل شوی له قرآن وي

%%%

## سلطان شهيد

کوم وخت چې انسان د موټې خاورو نه پيدا شي
دې سره د زړه پکښې آرزو، جهان ته راشي
بيا د ګناهونو خوند مشکل د هغه کار دی
بې له ځانه، بل ته نه کتل د هغه کار دی
ځکه چې خودي نه راځي ځان ته بې عصيانه
دا چې لاس ته نه راځي شکست راشي انسانه
تا خو زما ښار او هم ديار دی ښهٔ ليدلی
هم دي په ليمو زما مزار دی ښهٔ ليدلی
اې چې دي ښکاره د کائنات درته حدونه
وايه په دکن کښې څه د ژوند شته اثرونه؟

## زنده رود

تخم مي د اوښکو دی شيندلی په دکن کښې
هلته ريدي ګلي به زرغون شي په چمن کښې
سيند د کاويري دی په سفر کښې ځي په زور دی
و مي ليد چي بل شانې پيدا پکښې يو شور دی

%%%

## سلطان شهيد

اې چي زړه روښان کړې درعطا هسي وينا ده
لا مي ستا له اوښکو له ګرمۍ هستي جليا ده
ځار يې له نوکانو چي پوهان دی د رازونو
وباسي ولې د وينو، رګ نه د سازونو
ستا له زړه را ووځي چي نوا کومه لمحه کښې
سوز کاندي دننه را پيدا هره سينه کښې
پاتې يې حضور کښې يم مولا چي کوم د کل دی
هغه چي رهبر او هم هادي د کل سبل دی
څو که په حضور کښې يې جرآت دګفتار نشته
روح لره بل کار هلته سوا له ديدار نشته
اور غوندي چي ورته ما ته ستا تاوده اشعار شول
ناڅاپه روان زما په ژبه ستا افکار شول

وې چې "دغه شعر چې تا اووې دا د چا دی؟
شور چې پورته کیږي ترې د ژوند، ګویا دریا دی
بس د هغه سوز سره چې روح شي پرې روښانه
یوسه کاویري ته دغه دوه حرفه زما نه
ته یې زنده رود او هم هغه دي زنده رود وي
ښه وي څومره ښه چې یو سرود کښې بل سرور وي

## د سلطان شهید پیغام کاویري سیند ته

## ((د مرګ ژوند او شهادت حقیقت))

اې د کاویرې سینده! چې نرم په خرام یې
ډېر جوړ ستړی شوی یې په ځغاسته چې مدام یې
اې چې مونږ ته ګران یې د جیحون او له فراته
زیاتې دي دکن ته چې اوبه دي تر حیاته
آه چې هغه ښهر ؤ ژوندی ستا له آغوشه
رونړ یې چې ګوګل ؤ ستا د ښو اوبو له نوشه
زوړ شوې پخوانی شوې خو ځواني دي هم هغه ده
پیچ او تاب، اوبه او رواني دي هم هغه ده
بس د مرغلرو زېږېدونکې ستا چپه وي

نېغه او تروه دي تر آبده ستا شمله وي
سوز پکښې د ژوند ښکاري دا هسي ساز دي تا دی
څه هم پرې پوهېږې چي پيغام پکښې د چا دی؟
هغه چي مدام يې په طواف کښې د سطوت وې
هغه چي يې ته څرګنده نخښه د دولت وې
هغه چي صحرا يې کړه جنت غوندي رنګينه
هغه چي خپل نقش يې کړلو جوړ پخپله وينه
هغه چي ده خاوره يې مرجع د ارمانونو
دی هم ستا له وينو، اضطراب يې د موجونو
هغه چي ګفتار هم د هغه همه کردار ؤ
ټول مشرق ويده ؤ خو دا يو ؤ چي بيدار ؤ
زه او ته څپې د ژوند د سيند يو چي تېرېږي
هره ساه چي اخلې کائينات ګوره بدلېږي
ژوند ته نظر وکړه انقلاب يې په هر دم دی
ځکه چي لټون کښې دغه ژوند د يو عالم دی
دې سره او سامان د هر يو څيز له رفت او بوده
دی دا همه ذوق او هم نمود له رفت او بوده
لارو لره هم د لارو غوندي سفر دی
هر ځای کښې چي ګورې سفر پټ، ښکاره حضر دی

اوښه که صحرا ده، که جنګ که کاروانونه
هر څيز ته چي وګورې ژړېږي له بېلتونه
ګل چي په چمن کښې دی مهمان د يو نفس دی
رن‌ګ که يې ښايست دی، امتحان د يو نفس دی
څه وي پسرلی؟ خو هم ماتم وي هم مېله وي
غېږ کښې يې غونچه وي لاش د ګل يې پر اوږده وي
ما ريدي ته اووې چي لې نور هم وسوځېږه
وې چي ته پوې نه يې لې په راز مي وپوهېږه
وې د خس خاشاک ځنې تعمير د وجود څه وي؟
وايه نتيجه بې له حسرت، د نمود څه وي
مه راځه دې سرای د هست او بود ته که راځې ته
مه راځه عدم ځنې وجود ته که راځې ته
او که راغلې، مه مره، د سپرغۍ غوندي له ځانه
شابه! په لټون کښې د يو درمن شه روانه
وي که ستا په زړه کښې لکه لمر هسي تاوونه
تا لره ميدان دی دا فراخه اسمانونه
وسېزه مرغان، غر و ګلشن او ميدانونه
پورته شه د سيند د لاندي اوسېزه کبونه
بيا که په سينه کښې دي د غشي خوړو توان وي

مرګ او ژوند به ستا لکه شاهين په دې جهان وي
ژوند چې مقصد وي په هغه کښې ډېر ثبات دی
ما له خدايه غوښتی ځکه کم اوږد حيات دی
رسم دی که دين دی، که طريق، د ژوندون څه دی؟
سل کاله د ګډ تر نه يو دم د مزري ښۀ دی
ژوند چې دی محکم نو له تسليم او له رضا دی
مرګ خو يا جادو يا شعبده يا سيميا دی
مرګ لکه هوسی، بنده د حق زمری هوښياره
مرګ له سل مقامو يو مقام، د ده په لاره
داسي کامل مرد په مرګ غوټه وکړي له بره
څرنګه شاهين چې راشوغه شي په کوتره
هره ګړۍ مري، چې وي غلام، د مرګ له ويرې
ژوند په دې دنيا وي پرې حرام، د مرګ له ويرې
کوم يو چې آزاد بنده د حق وي شان يې نور وي
نوی ژوندون ورکړي جوړ په مرګ باندي يې پور وي
فکر د خودۍ کړي خلاص د مرګ وي له هيبته
مرګ د آزاده ؤ نه وي زيات له يو ساعته
داسي مرګ وه مه مره چې فنا شې تل لحد وي
ځکه چې په دې ډول خو مرګ د دام و دد دي

مرد چې وي مومن نو غواړي دا له خدایه پاکه
هغه دویم مرګ ، چې بیا را پورته شي له خاکه
هغه دویم مرګ د شوق د لارې انتها وي
هغه اخیري تکبیر د منې د غزا وي
مرګ له هره قسمه خوږ مومن ته وي که سپور دی
مرګ چې د فرزند د مرتضیٰ ؑ ؤ هغه نور دی
جن-ګ د بادشاهانو د جهان غارت ګري وي
جن-ګ د مومنانو خو سنت پیغمبري وي
جن-ګ د مومن څه وي؟ خو هجرت په لور د یار وي
ترکه کړي دنیا د یار کوڅې ته بې اختیار وي
هغه چې د شوق تکی بې خور کړو په اقوام کښې
وېې وېل چې "جن-ګ رهبانیت دی په اسلام کښې"
بې شهیده دا نکته چا ونه پېژندله
ځکه چې هغه په خپلو وینو وکټله

%%%

# زنده رود د جنت الفردوس نه رخصتېږي حورې ترې څه غوښتنه کوي

ما ته د سکون، صبر، ښېښنه مي شوه له لاسه
پیر د روم په غوږ کښې راته وویل چي پاڅه
څه د شوق خبري وې او څه جذب و یقین ؤ
آه! هغه ایوان هغه محل، څومره رنګین ؤ
لاړم دروازې ته يې چي زړه مي ډېر مغموم ؤ
هلته دروازې سره د حورو لوی هجوم ؤ
بس د دوی په خوله ؤ زنده رود، اې زنده روده
اې هغه چي زړونه اخلي سوز دي له سروده
شور او هم غوغا له هر طرف وه سراسره
"یو ساعت خو موږ سره هم کښېنه د زړه سره!"

## زنده رود

هغه لاروی چي د سفر په راز پوهیږي
زیات له رهزنانو دی د "ناستې" نه ویریږي
عشق ته قرار نشته په هجران او په وصال کښې
شته ورله قرار خو په جمال د لایزال کښې
کیږي معشوقو ته سرکوزي په ابتدا کښې
راشي د هغو نه آزادي، په انتها کښې
عشق دی بې پروا، مدام په ت‌ک او پوی په لار دی

وي که په مکان، که لامکان کښې "ځوی د لار دی"*

کار مي دی په شانې د څپو او تېز مي گام دی
لار مي خوره کړې ده، پرې اېښی مي مقام دی

## د جنت حوره

خوی د زمانې دي چې نصيب دی قلندره!
مورږ ته هم که ووايې خوږه غوندي سندره

%%%

## د زنده رود غزل

آدم ته رسېدای نه شې مولا څه لره غواړې؟
له ځانه تښتېدلی يې آشنا څه لره غواړې

ته بيا د گل د څانگې سره سم شه نم ترې واخله
اې اوچه رنگ الوتيه! صبا څه لره غواړې؟

يو دوه څاڅکي د زړه وينه ده، مشک چې ورته وايې
غر څه د حرم، ته يې له خطا څه لره غواړې؟

---

* ابن سبيل

د فقر امتحان په سلطاني، جهانګیرۍ شي
د چم بادشاهي وغواړه، بوریا څه لره غواړې؟

درك يې کړه معلوم په سرو تلونو د ریدي کښې
زما په وینو سره، نوا له ما څه لره غواړې؟

نظر خو په صحبت کښې د روښان زړونو زیاتیږي
د تا نظر که کم دی نو توتیا څه لره غواړې؟
زما دې کرامت جهان بیني زه قلندر یم
زما نه نظر غواړه، کیمیا څه لره غواړې؟

## حضور

څوکه دی جنت له تجلۍ د کردګاره
زړه مي قرار نه کړي بې محبوب د ښه دیداره
پټ چي له خپل ځانه وي پرده کښې هغه زه یم
خپله ځاله ورکه ده له ما، هغه مارغه یم
دا علم زما که کوړ فطرته بد جوهر دی
سترګو ته زما په مخکښې دا حجاب اکبر دی
علم نه مقصد د چا په خیال کښې که نظر دی

بس نو دغه علم ده، هم لار او هم رهبر دی
تا ته کړي در مخکښې چې پوستکی د وجود دی
ځکه چې ته وپوهښتې، څه راز د دې نمود دی
بس نو هم په دې ډول د لار آواروینه
دغه شان دي ت ـګ دپاره شوق بیداروینه
سوی، دردونه، هم تودې سرې درته عطا کا
هم د غریو ژړا د نیمې شپې درته عطا کا
علم د تفسیر د رن ـګ او بوی د دې جهان
دې نه تربیت اخلي که زړه دی که چشمان
تا مقام د جذب او شوق ته راولي، بیا لیږدي
تا د جبرائیل غوندي یوازي هلته پرېږدي
عشق بغیر له ځانه بل څوك نه وړي تر خلوته
ځان د عشق مجبور وي هم د خپل ځان له غیرته
تل په ابتدا کښې هم رفیق او هم طریق وي
بیا په انتها کښې يې مزل بې له رفیق وي
بیا مي له دې حور او له قصور واخسته ګړه
ما د زړه کشتۍ د نور په سیند کښې کړه ورګډه
ډوب يې ومه زه په تماشه کښې يو جمال ؤ
وو په انقلاب کښې هر دم، خو لا یزال ؤ

ورك شوم په ضمير د كائينات كښې ورك حجاب شو
ما وته ژوندون ښكاره، په شان د يو رباب شو
داسې چې هر تار به يې رباب ځان ته جدا ؤ
سور يې هر آهنگ په وينو يو له بل سوا ؤ
يو ده قبيله زموږ له نار يو كه له نوره
لمر، سپوږمۍ، آدم دی، جبرائيل دی او كه حوره
ځوړنده زموږ د روح په مخكښې آئينه ده
گډه حيراني ده، د يقين سره پرته ده
دا د نن سحر گوره چې نور يې ښه ظاهر دی
نن او كه صبا دی په حضور كښې يې حاضر دی
حق خو ښۀ څرگند سره د كل واړه اسرار دی
كړي زما په سترگو خپل ديدن دغه يې كار دی
ديد د هغه بې د كمېدلو زياتېدل دي
ديد د هغه څه؟ د تن د قبر نه وتل دي
عبد او كه مولا دی، دی يو بل ته په خزه كښې
دواړه يو او بل ته دي په شوق د ننداره كښې
ژوند كه په هر ځای كښې وي لټون به ورسره وي
پوی نه شو مه ښكاره به يمه زه، كه به هغه وي
مينې زما زړه وته لذت د ديدار وركړ

هم يې زما ژبې ته جرائت د ګفتار ورکړ
اې چې دوه عالم ته نور نظر دی ستا له لوره
لږ هغه د خاورو دنیاګۍ ته هم وګوره
ستا آزاد بنده دپاره دا نه وي سازګاره
وکړي سنبل ك پکښې ډکه شي له خاره
کار د زورورو عېش عشرت کښې غرقېدل وي
کار د مغلوبانو بس د شپو ورځو شمېرل وي
ستا جهان خراب ملوکیت کړو پرې تنګسه ده
پټه په لستوڼي د آفتاب کښې توره شپه ده
عقل د فرنګ سره ډاکې دي، هنر نشته
جوړې له خیبره شوی ګرجې، چې حیدر نشته
وایي لااله چې هغه خلق بې چاره دي
نه لري مرکز ځکه يې فکر آواره دي
سخته ساه لري چې ورپسې مرګه څلور دي
دا څلور: "ملا دی او والي، پیر او سودخور دی
دا غوندي عالم مناسب نه دی ستا له شانه
ستا په لمن داغ دا اوبه ختې دي یزدانه"

## د جمال ندا او زنده رود

# د جمال ندا

ښهٔ او بد نقشونه ټول د خدای قلم راښکلي
ښهٔ چي موږ دپاره ؤ هغه يې دي ليکلي
څه ته موجود وايې څه خبر يې نېك صفا ته؟
واخلي د جمال برخه چي څوك د حق له ذاته
څه له پيدايښت دی خو لټون له د دلبرو
ځان ښکاره کول دي بر، په نورو "لار پسرو"
څومره هنګامه چي د عالم درته ښکارېږي
بې زما له حسنه هيچري نه پيدا کېږي
دا زندګاني خو هم فاني ده هم باقي ده
دا خو همه واړه خلاقي او مشتاقي ده
اې که ته ژوندی يې، نو مشتاق شه چي خلاق شې
ما غوندي چي ته راګېرونکی د آفاق شې
خوښ چي نه وي ستا هغه ور پاڅه کنډکپړ کړه
بل نوی جهان د خپل ضمير نه را بهر کړه
وي آزاد بنده چي د هغه دپاره ګران وي
ژوند تېرول مرګ ورته، د غيرو په جهان وي
هر هغه خالي چي د قوت نه د تخليق دی

دی هغه کافر زما په خیال کښې هم زندیق دی
برخه د جمال يې هيڅ زما وانخستله
ده د ژوند د ونې هيڅ مېوه ونه خوړله
پاڅه پر کوونکې ته په مثل د شمشير شه
ته دې خپل جهان لره پخپله خپل تقدير شه

## زنده رود

بس دغه آئین دی جهان دی چې ښکارېږي
نه راځي چينې ته بيا اوبه چې وبهيږي
ژوند چې څه کار وکړي، دويم ځل هغه کار نه کا
روږدی يې فطرت دی هسې شان چې تکرار نه کا
لاندې تر اسمانه بيا واپس نه را ستنيږي
هغه قام چې پرېوتو بيا نه را پورته کيږي
کوم ملت چې مړ شو، پورته کيږي کم له قبره
بله لار يې څه وي يې له قبره يې له صبره

%%%

## د جمال ندا

مه ګڼه دا ژوند چې تله راتله به د نفس وي
اصل يې له حی او له قيوم دی، دا به بس وي
انې قريب ويونکې ته د روح نزدې کېدل
خپله نصيبه د عمري ژوند نه اخستل
فرد وته توحيد چې ور حاصل شي لاهوتې شي
ور چې شي ملت لره توحيد جبروتې شي
جوړ دی بايزيد او هم شبلې، بوذر د دې نه
هم دې امتونو ته طغرل، سنجر دې نه
بې د تجلی نه د آدم کله ثبات وي
يو جلوه زما فرد او ملت لره حيات وي
دې دواړو اخستی د توحيد څنې کمال وي
ژوند په دوی کښې يو لره جلال، بل ته جمال وي
دا سليمانيυ ده هغه بله سلماني τ ده
هغه سر تر پاپه فقيري دا سلطاني ده
هغه يو ليدل دي او دا بل دي يو کېدل
زده کړه له هغو ناسته، له دغو اوسېدل
څه دی ملت؟ اې چې تل په خو له دې د لاالٰه وي
سترګې که زرګونه وي، يوه د دوی نګاه وي
يو د حق پرستو وي دعوې او حجتونه

بېلي مو خېمې دي، خو دي يو مو سره زړونه
وي ډېري ذرې چي يو نظر لري افتاب شي
تاسو يو نظر شئ، درته حق چي بې حجاب شي
کم ورته ونه ګورئ چي دا يو نظري ده
دا د تجلو نه د توحيد يو تجلي ده
مست چي د توحيد په پاکو ميو کوم ملت شي
ده وته حاصل هم جبروت او هم قوت شي
روح راشي ملت کښې له ټولني انجمنه
روح د ملت نه را پيدا کيږي له بدنه
بس نو چي وجود يې د صحبت نه پيدا کيږي
مړ شي، شېرازه د دې صحبت چي يې خورېږي
مړ که يې؟ نو واوره، يو نظر شه چي زنده شې
لرې ځان ځاني کړه يو له بل چي پائنده شې
جوړ دي په کردار او په افکارو کښې وحدت کړه
بيا نو اقتدار د جهان واخله حکومت کړه

## زنده رود

زه څه يم؟ ته څه يې؟ جهان کوم دی؟ راته وايه
ولې زه او ته وبله لري يو بې ځايه

زه ولي په بند او زولنو کښې د تقدير يم
ته چي نه مرې، زه د مرګ په دام ولي اسير يم؟

## د جمال ندا

ته يې پاتې شوی په څلور ګوټه جهان کښې
هلته چي مېشته وي، خود به مري هغه مکان کښې
ونيسه خودي که درته ژوند غوره د ځان دی
غرق يې کړه په ځان کښې چي څلور کنجه جهان دی
و به وينې پس له چي زه څه يم ته له چا يې
څنګه په دنيا کښې مرې او څنګه پکښې پايې

## زنده رود

څوکه دی ناپوهه، سوال قبول د دې بنده کړه
لرې د څيرې نه د تقدير راته پرده کړه
رن‌ګ‌ـ رن‌ګ انقلاب د روس، المان، دی ما ليدلی
هم په زړه کښې شور د مسلمان دی ما ليدلی
ما د شرق او غرب همه ليدلي تدبيرونه
ما و ته ښکاره د شرق او غرب کړه تقديرونه

# د جلال تجلي را پرېوزي

ناڅاپه مي ولیدلو زوړ زما جهان
هغه زما مځکه، زما هغه لوړ آسمان
غرق ؤ په یو نور کښې چي شفق غوندي پرې خور ؤ
سور ؤ داسي تا به وې نغری ؤ ډک له اور ؤ
ډېرو تجلو له خپله خوده و ایستمه
زه لکه موسیٰ په "دیدن مست" را ولوېدمه
نور د هغه هره یو پرده کړه راته لرې
ډېري ننداري مي خوله کښې وچي کړې خبرې
بیا نو له ضمیر، د بې چګون غوندي عالمه
پورته شوه ندا، ډکه له سوز او له المه
تېر شه له مشرق هم د جادو د فرنګي نه
دي زاره که نوي د ورېښې هم نه دینه
ور دي کړو شیطان ته درسره چي کوم نګین ؤ
نه ؤ د ګروئ که يې قابل روح الامین ؤ
ژوند ټولنه غواړي پخپله ځان يې هم نظر دی
ځان ته اوسه څو که دي کاروان سره سفر دی
ته ځائي راغلی يې د لمر نه ډېر تابانه

داسي ژوند کوه چي هر بڅرې کړې روښانه
پروت چي لکه باد وته یو خس په ره ګذر دی
تللی هم دارا، قباد، خسرو او سکندر دی
ستا له واره جامه میکده رسوا شوه شومه
واخله پیاله وڅښه حکیمانو غوندي درومه

%%%

# جاوېد ته خطاب

## (دنوي کهول سره يوه خبره)

هسي د د نیا ښایسته کول څه د کار نه دی
نه را ووځي هغه چي په تل کښې مي د زړه دی
سل نکتې مي وښودلې وې چي په حجاب کښې
شته یوه چي نه به شي پیدا په یو کتاب کښې
زه که يې څرګنده کړمه، لا به پېچېده شي
دا به بزغ او حرف کښې به له تاسو پوشیده شي
واخلئ ترې نه سوز چي مي موجود دی په نظر کښې
یا زما له آهه، چي کوم يې په سحر کښې
تا ته خپلي مور رومبی سبق ؤ درښودلی

ته يې له صبا لکه غوټۍ وې غوړېدلی
رنګ او بوی په تا کښې دا عطا ده د هغې نه
اې زموږه پنګې ستا بها ده د هغې نه
جمع تا د هغې نه دولت کړو پائېدونکی
ته چې له هغې د لاالٰه شوې زده کوونکی
اې بچيه! ذوق اوس د نظر زما نه واخله
سول په لاالٰه کښې سراسر زما نه واخله
ته که لاالٰه وایې د روح په خوله يې وايه
بوی د روح چې ستا له هر اندامه شي نمايه
سوز د لاالٰه نه لمر سپوږمۍ په ګرزېدو کښې
دا سوز مي ليدلی هم په غر هم په وښو کښې
دوه د لاالٰه حرفونه، نه دي له مذکوره
نشته چې امان ترې لاالٰه ده هغه توره
سوز د هغې ژوند کښې چې وي وصف د قهار دی
لاالٰه ګذار دی، ولې ښه کامل ګذار دی
حيف دی چې مومن او کمر کس د غير په وړاندي
دې له غداری، فقر و نفاق، پرېوتې لاندي
خرڅ يې په يوه کاسيره خپل دين او ملت کړو
وې سېزلو کور، هم يې سامان د کور لت پت کړو

لمونځ کښې لااله د ده موجود ؤ خو اوس نشته
ناز یې هر نیاز کښې په نمود ؤ خو اوس نشته
نور یې ښکاره نه شو د لمانځه او د روژو نه
تشه پاتې شوې یې دنیا ده د جلوو نه
هغه چې یقین یې ؤ سامان له پاکه دره
ځای یې کړه په زړه کښې د مال مینه د مرګ ویره
تلی د سرور او د مستۍ یې هغه زور دی
دین ترې په کتاب کښې پاتې شوی دی په ګور دی
مل شو د دې نوې زمانو د انسانانو
نوی دین یې زده کړلو له دوو پیغمبرانو
هغه له ایرانه پیدا دا هندي نژاد
هغه دی له حجه بېګانه دی له جهاد
پاتې چې جهاد شو او نه حج له واجبات
روح له کالبوت ووتو د صوم او له صلٰوة
روح چې کوم وخت ووت د لمانځه او له صیامه
فرد یې شو کاواکه، او ملت یې بې نظامه
تاؤ یې په سینو کښې پاتې هیڅ د قرآن نه دی
بیا د داسي خلګو نه امید د نېکۍ څه دی
لارې د خودۍ هغه قیصې، کړې مسلم هیرې

لاس دي راکړه خضره! شوې اوبه له سره تېرې
څه یوه سجده وه چې ترې مځکې لړزېدلې
هم چې لمر، سپوږمۍ د دې په خوښه چورلېدلې
نقش به که په کاڼي د هغه سجدې ښان شو
کاڼی به هوا کښې د لوګي غوندي پرېشان شو
نن صبا خو هغه نور څه نه دي، سرټيټي ده
نور څه پکښې نشته د پيرۍ ناتواني ده
اوس مو هغه شان چرته په ربي الاعلیٰ کښې
دا د ده ګناه ده؟ که تقصير په ما او تا کښې؟
نور خل‌ک پخپلو لارو وينم تېز خرامه
اوښه ده زموږه تېرېدلې بې لګامه
ذوق د طلب نه لري، که لاس کښې يې قرآن دی
زه ورته حيران يمه، حيران يمه، ارمان دی
ته چرې خاوند که د نظر هغه قدير کړې
ښايي چې راتلونکې زمانه ډېره ښۀ څير کړې
زړونه يې بې سوزه دي بې باکه يې عقلونه
دي مجاز کښې ډوب، نه لري سترګو کښې شرمونه
علم و فن دی، دين او سياست که عقل زړونه
ډلې- ډلې کړي د آب و ګل نه طوافونه

هغه ایشیا، چې ځای د نور او د آفتاب دی
غیرو ته اوس ګوري د خپل ځان نه په حجاب دی
زړه یې دی خالي له نوو۔ نوو وارداتو
نشته دوه وربشې یې قیمت د حاصلاتو
ژوند یې په دنیا کښې د مړګونو نه بتر دی
یخ دی او ولاړ دی او بې ذوقه د سفر دی
ښکار د ملایانو بادشاهانو دی نو څه کا
ګوډه یې هوسۍ د عقل فکر څه به تلۀ کا
عقل دی، که دین دی، که دا تش، که نام و ننګ دی
بند یې په تسمه کښې د ټګانو د فرنګ دی
وکړلو یرغل مې په عالم یې د افکارو
څیرې یې پرده کړه، چې ده ویړ یې په اسرارو
ما خپله سینه کښې دا خپل زړه دی پرې چوولی
پس له دې جهان مې د هغه دی لړزولی
خپلې زمانې دپاره دوه حرفونه وئیلي
دوه لوښو کښې ما دوه سمندره راوستلي
دا مې ؤ خواهش، چې څه پیچي، څه لشه دار کړم
عقل او زړه دواړه د سرو پرې باندي ښکار کړم
ده یوه وینا مې پیچاپیچ لکه فرنګ ده

بله مستانه یوه ژړا، له تار او چنګ ده
دا جوړه له ذکره، هغه بله ده له فکره
خدای دي میراث درکاندي له دې فکره او ذکره
یم هغه وله، چې له دوه سینده را نما یم
هم یم د هغو سره واصله هم جدا یم
جوړه چې مزاج د زمانې نوې دنیا کړه
طبعې زما نوې هنګامه ځکه پیدا کړه
تړي دي ځلمي، تش يې په لاس کښې دي جامونه
روڼ مخونه، تور زړونه، روښانه دماغونه
واړه بې یقینه، نااميده، کم نظر دي
دوی په سترګو هیڅ لیدلي نه دي بې خبر دي
دی ایمان په غېرو يې له ځانه منکرېږي
خښتې د ګرجو د دوی د خاورو نه جوړېږي
نه ده مدرسه د خپل مقصد نه خبرداره
ځکه چې د زړه جذبې ته نه بیا مومي لاره
نور يې د فطرت پېچې له زړونو او وینځلو
یو ګل يې له شاخه چرته ونه غوړېدلو
ښومره کړې خښتې دا معمار زموږه ړدینه
دې د باز بچي ته خوی د بطې ورښيينه

علم چې تر څو وانخلي سوز له دې حیاته
زړه به خوند وانه خلي هیچرې له وارداته
علم نور څه نه دی، شرح ستا د مقاماتو
علم نور څۀ نه دی، خو تفسیر ستا د آیاتو
ښایي چې پرې وسوزې چې اور دي دی په حس کښې
و به کړې بیا فرق په سپینو زرو او په مس کښې
علم خو د حق اول حواس آخر حضور دی
بس دغه آخر دی، چې ډېر لري له شعور دی
سل کتابه زده که د خاوند نه د هنر شي
ښۀ هغه سبق دی چې اخستی له نظر شي
بس هغه شراب چې د نظر ځنې څڅیږي
هر سړی چې ګورې په بیل ډول پرې مستیږي
باد چې د سحر په چلېدو شي، ډیوې مړې شي
ډکې د ربډي پرې د شرابو نه پیالې شي
کم دي کړه خوراک، او کم دي خوب، کم دي ګفتار کړه
ته له خپله ځانه چورلېدل لکه پرکار کړه
وي د حق منکر چې، د ملا په نزد کافر دی
وي منکر د ځان چې، نو زما په نزد کافر دی
هغه په افکار د حق تندي اوکړه "عجول" شو

دغه هم عجول او هم ظلوم او هم جهول شو
خوی د اخلاص ښه محکم ملګری د خپل ځان کړه
پاك دي زړه له ويرې د امير او د سلطان کړه
عدل چي پرې نه بړدې ته، په قهر او په رضا کښې
اوسه میانه رو په غریبۍ او په غنا کښې
حکم دي مشکل وي، خو تاويل پسې لاړ نه شې
ګوره بې خپل زړه، په بل قندیل پسې لاړ نه شې
ده د روح ساتنه ذکر، فکر بې حساب
ده د تن ساتنه، ځان ساتنه په شباب
ګوره دې دنیا کښې حکومت د کوز و پاس
بې د روح او تن ساتنې نه راځي په لاس
خوند د ګرزېدو خپله مقصد د هر سفر دی
مه الوزه ګورې! که په ځاله دي نظر دی
ګرځي سپوږمۍ ګرځي چي بیا و مومي مقام
ګرځنده آدم له حرام شوی دی مقام
ګرځي قمر دې لره، څښتن چي د مقام شي
سير چي د آدم وي نو مقام ورله حرام شي
ژوند خو نور څه نه دی، خو لذت یو د پرواز دی
کله شي فطرت بې چي د ځالي سره ساز دی

رزق وي د ګور خاورو کښې د زاغ او تپوسانو
رزق وي په وطن د لمر، سپوږمۍ کښې د بازانو
راز د دين ربښتيا۔ ربښتيا ويل خوراك حلال
ځان له او په جمع تماشا کړې د جمال
لاره د خپل دين کښې داسي سخت لکه الماس شه
زړه تړه په خدای او نور له هرڅه بې وسواس شه
راز يو د رازونو نه د دين بهٔ درته وايم
واوره چي داستان د مظفر* درته ونما يم
هغه په اخلاص کښې بې مثاله ؤ فريد ؤ
ؤ خو يو بادشاه خو په مقام د بايزيد ؤ
ؤ د ده يو آس چي پرې د ځوی غوندي ډېر ګران ؤ
کلك د خپل څښتن غوندي به وخت کښې د جولان ؤ
دا له رنګه شين او ښهٔ اصيل نجيب عرب ؤ
ډك ؤ د وفا نه څه بې عيبه پاك نسب ؤ
پېژنې؟ چي ګران وي هر مومن ته نکته رسه
بل څه؟ بې قرآنه، بې له توري بې له اسه
څو به کړم صفت درته د دې اصيل د ښو تلو
ؤ لکه د غر خو لکه باد به په اوبو تلو

* مظفر: د ګجرات بادشاه د سلطان محمود زوېچي د هند مسلمانانو به ورته بيګړه ويل

دې د جن‌ګ په ورځ به جن‌ګ ته څك لكه نظر ؤ
تاؤ به لكه باد هسي له غر او له كمر ؤ
دی به چي په زغل شو زلزلې به جوړېدلې
ګټې به يې تل د سُم له زوره وړېدلې
بيا نو يوه ورځ چي محترم لكه انسان ؤ
خوړ د ګېډې راغله، پرې مضطر هغه حيوان ؤ
وكړل سلو ترې يې په شرابو علاجونه
آس د بادشاه جوړ شو، لاړه ورك يې شو دردونه
بيا پرې بادشاه سپور نه شولو ګوره څه تقوٰی ده
بيا د تقوٰی لار زموږ خو وګوره جدا ده
اې چي خدای در كړی درته ښه زړه او ځيګر دی
څه دي هم طاقت د مسلمان وته نظر دی
دغه سر تر پايه سوزېدل دي له طلبه
عشق يې انتها وي ابتدا يې له ادبه
ګل چي قدرولی شي سبب يې رن‌ګ و بوی دی
وي چي بې ادب، بې رن‌ګ او بوی، بې ابروی دی
ما وته ښكاره چي بې ادبه كوم يو ځوان شي
ورځ كه وي خو ما باندي تياره هغه جهان شي
سوز مي دم تر دمه په سينه كښې سيوا كيږي

بيا نو زمانه د مصطفیٰρ راته يادېږي
ژوند چي کړم په خپله زمانه کښې پښېمان شم
زه تېرو پېړيو ته ور دو کړمه، پنهان شم
ښځې لره ستر خپل خاوند ګڼه، يا ګور دی
دا د سړو ستر چي بد يار ورله پېغور دی
څوك چي بد زبانه وي په بده لار روان دی
ټول د خدای مخلوق دی که کافر که مسلمان دی
څه دی سړی توب خو احترام د بنيادم دی
پوهه شه خبر شه څه مقام د بنيادم دی
ربط يو له بله تعلق د سړو ښهٔ شي
ښه وي چي وبله د دوستۍ په لاره تله شي
څوك بنده د خدای چي وي له خدايه يې طريق وي
هغه په کافر په مسلمان باندي شفيق وي
کفر وي که دين، ساته يې زړه کښې دا به ښه وي
زړه چي له زړه تښتي وايه داسي زړه بهٔ څه وي
زړه که پراته د خاورو ختو دی بندونه
بيا هم دی پيدا له زړه آفاق او آسمانونه
ځان که يې د کلي يا مالك د لوی جاګير يې
ښه به ښکاري داسي چي په خوی له فقير يې

دی د تا په زړه کښې سوز د فقر اوده پاتې
دغه مي دی ستا له مشرانو زاړه پاتې
بې د خواخوږی نه، نور سامان د دنیا هیڅ دی
سوال کوه د خدای څنې، سلطان د دنیا هیڅ دی
دی هغه سړی چې حق پسنده او بصیر شي
ډېر چې شي نعمت نو هغه ړوند شي هواګیر شي
ډېر چې شي نعمت نو سوز ګداز د زړه نه یوسي
ناز پکښې پیدا کاندي نیاز د زړه نه یوسي
زه یم په کالونو په دنیا کښې ګرځېدلی
نم مي د "شتمنو" په لېمو کښې کم لیدلی
زار شم له هغه چې بې ژوندون فقیرانه وي
حیف شه په هغه چې د الله نه بېګانه وي
نشته مسلمان کښې هغه بوی د ذوق او میني
نه هغه یقین او هغه خوی د ذوق او میني
علم د قرآن نه بې نیازه عالمان دي
بزیري د صوفیانو دي اوږدې خو شرمښان دي
وي په خانقاګانو کښې اخته په هاوهو کښې
کوم دی پکښې مرد چې بې شراب وي میکدو کښې
ګیر مسلمانان د فیرنګیانو په ګرداب کښې

ګوري د کوثر چينه لټون کړي په سراب کښې
واړه بې خبره د اسرارو نه د دين دي
ډک دی د کينې او د حسد نه، بې يقين دي
خير که برکت دی په خاصانو کښې حرام دی
صدق او که اخلاص دی په عوامو کښې مدام دی
وپېژنه ته چي ديندارانِ او حاسدان دي
ناسته د هغو سره کوه چي حق جوبان دي
بيل د تپوسانو دی، چي رسم او آئين دی
شان يې څه جدا دی، کوم الوت چي د شاهين دی
مرد د حق را پرېوځي له آسمانه لکه برق وي
اوسيزي ښارونه که صحرا که غرب او شرق وي
مونږ يو لا تياره او په ظلام د کائنات کښې
هغه وي شريک په اهتمام د کائنات کښې
وي هغه داؤدυ مسيحυ، کليمυ او هم خليلυ وي
هغه محمدρ وي، هم کتاب هم جبرائيلυ وي
لمر د کائينات چي وي د زړه د خاوندانو
ژوند وي د هغه د پلوشو نه د پاکانو
تا به په اول کښې په خپل اور باندي سوخته کړي
پس د دې نه چل د بادشاهۍ به درته زده کړي

دا د هغه سوز دی چې پرې برېښي زموږ زړونه
او ګڼي د خاورو ختو یو فاني نقشونه
ته چې یې پیدا په کښې دا عصر دا مې غم دی
غرق دی په بدن کښې او د روح نه خبر کم دی
کوم وخت چې بدن د روح د قحطه نه ارزان شي
مرد چې وي د حق هغه پخپل ځان کښې پنهان شي
بیا خو موندای شي هغه مرد په یوه لوري
څو که مخامخ چا سره ناست وي ورته ګوري
بیا هم دی باید د طلب شوق دي په زیاتي شي
څو که ستا په لاري را پیدا سل اړیکې شي
ستا که صحبت ونه شو له هیڅ یو خبرداره
واخله څه چې پاتې ما ته دي له نیکه پلاره
ته که پیر د رومؒ په ملګرتیا درسره ساز کړې
ته له خپله خدایهΨ به حاصل سوز و ګداز کړې
ځکه چې روميؒ له مغزه پوست شي بېلولای
بنه محکم قدم شي د یار در کښې ایښودلی
شرحه یې ده کړې، خلکو دی نه وي لیدلی
متن نه غر څه یې د معنا دی تښتېدلی
دوی یې له وینا د تن ګډا خو ده زده کړې

سترګي يې د روح د ګڼډو نه دي ترلي
رقص چي د تن دی، هسي خاورې بدول دي
رقص چي د روح دی، آسمانونه لړزول دي
رقص نه د روح، علم و حکمت لاس ته را درومي
هم مځکه اسمان، هم حکومت لاس ته را درومي
فرد وه حاصل ترې د کليمυ غوندي جذبه شي
پاتې ترې ملت ته، د ملکونو ميراثه شي
رقص چي د روح دی، د هغه زده کول ګران دي
بې له حقه نور همه سېزل کله آسان دي
څو دي چي ځيګر کښې اور د حرص او غم بليږي
هيچري ګډا د روح بچيه نه زده کيږي
ضعف د ايمان، د دنيا غم او دلګيري ده
واوره اې ځلميه! دغه غم نيمه پيري ده[*]
څوك چي وي حريص نو تل افلاس ورته حاضر[⌧] وي
زه غلام د هغه چي خپل نفس باندي قاهر وي
اې ځلميه! بس دغه تسکين زما د زړه دی
رقص که د روح دي شي نصيب نو څومره ښه دی

---

* نيمه پيري: تلميح ده د مشهور حديث: اللهم نصف الهرام.
⌧ فقرِ حاضر: تلميح ده د مشهور حديث: اياکم والطمع فانه الفقر حاضر.

**تا ته چي مي اووې راز د دين د مصطفٰیρ دی**
**هم مي درته قبر کښې لاس پورته په دعا دی**

# پای